## جومات ته ننوتل

جومات ته په ننوتلو کې به ښی پښه مخکې کړې او دا دعاء به ولولې:

اعوذُ بالله العَظيم وَبِوَجْهِهِ الكَرِيم وَسُلْطانِه القَديم مِنَ الشّيْطانِ الرَّجيم، [بِسْمِ الله، وَالصَّلاةُ] [وَالسَّلامُ عَلى رَسولِ الله]، اللّهُمَّ افْتَحْ لي أَبْوابَ رَحْمَتِك. [1]

ترجمه: پناه غواړم په الله چې لوی دی او په معزز ذات د هغه او په پخوانۍ بادشاهي د هغه له شیطان رټل شوي څخه (د ننوتلو شروع کوم) د الله په نوم سره درود د وي او سلام د وي په رسول الله باندې ای الله ماته ستا د رحمت دروازې خلاصې کړه .

[1] رواه ابو داود

# المسجد

ما غوښتل چې بېرته د فقهي کتابونو له پاڼو څخه سلسلې ته ادامه ورکړم او د هغې سلسلې په اومه کړی مې لاس پورې کړو مخې ته راته د جومات احکام راغلل نو مې غوره وګڼله چې پدې اړه خبره یو څه اوږده کړم نو ځکه ستاسې په لاس کې کتاب ورڅخه تیار شو د جومات په اړه احکام او آداب دومره زیات دي چې زمونږ دا وړوکی کتاب وربانديې احاطه نشي کولی لکن زه تر خپلې وسې پورې مختصر معلومات را غونډوم او که د جومات په اړه صرف دومره وویل شي چې جومات د الله کور دی او یا د سورة الجن ۱۸ آیة ته انسان په غور وګوري چې هلته الله فرمایي : دا جوماتونه د الله دي نو د جومات دومره قدر او مرتبه ښکاره کیږي چې د جومات په اړه نورو خبرو ته ضرورت نه پاتې کیږي چې یو ځای ته دومره احترام ورکول کیږي چې د ټول عالم د خالق کور ورته ویل کیږي دا فضیلت یې بس دی لکن څه داسې آداب او احکام زما له ډېر وخت نه

په دماغو کې را ګرځېدل چې اکثر زمونږ ورونه خو به یا ورڅخه خبر نه وي او یا به یې ساتنه نه کوي نو د جومات د تاریخ، آدابو او احکامو په اړه یو څه ملغلري د خپلو لوستونکو سره شریکوم امید دی چې دوی به یې په غور سره مطالعه کړي زمونږ په ټولو لیکنو کې زیات کوښښ دا وي چې په داسې الفاظو او داسې لهجه یې ولیکو چې لوستونکی یې له لوستلو ستړی نه شي امید دی چې د مخکنیو کتابونو په څېر به دا کتاب هم ستاسې خوښ شي دادی تاسې او دا کتاب سره پرېږدم .

د زم زم ادارې په کتابونو کې ددې او یا که د بل هر کتاب په اړه ستاسې کومه نیوکه ، نکته، اعتراض او مشوره وي زمونږ ا مید دی چې د زم زم سره یې شریک کړئ ترڅو یې زم زم په راتلونکي وخت کې د خپلو کتابونو ښکلا وګرځوي .

په مینه او احترام

مفتي کفایت الله وردګ

یادګېرنه :

د زم زم ادارې سره د اړیکو لپاره د برېښنا لیک ادرس او موبایل شمېرې لر ورانديې د کتاب په اړه د معلوماتو په صفحه کې تېر شوي دي .

# د جومات تعریف

په لغت کې : مسجِد (د جیم په زېر سره) اسم مکان دی د سجدې کېښودلو ځای ته ویل کیږي او مسجَد (د جیم په زبر سره) د انسان تندي ته ویل کیږي چې په کوم سره سجده لګول کیږي .

او په شریعت کې د زمکې هره برخه ده چې مونځ وربانده پ کېدلی شي لکه رسول ﷲ چې فرمایي :
جعلت لي الأرض مسجداً وطهوراً .[1]

ترجمه : زمکه زما لپاره مسجد او پاکې ګرځول شوېده (ماته روا دي چې هر چرته مونځ وکوم او د ابو د نشت والي په صورت کې ورڅخه تیمم ووهم) .

او دا ددې امت د خاصو امتیازونو څخه دی ځکه په مخکنیو امتونو کې داسې وو چې دوی ته به هرځای د عبادت اجازه نه وه او مونږ ته ﷲ په هرځای کې د مانځه کولو اجازه کړېده صرف په هغه ځای کې اجازه نشته چې مونږ ته په یقیني توګه معلوم وي چې هغه ځای پاک نه دی .[2]

---

[1] صحیح البخاري

[2] **شرح صحیح مسلم**

امام قرطبي فرمايي : الله يوازي دې امت ته دا اختيار ورکړى دى چې دوى هرچرته وغواړي مونځ کولى شي او مخکني امتونه داسې نه وو هغوى ته په خاصو ځايونو کې د عبادت کولو امر وو لکه کنيسه، بيعه .[1]

او په اصطلاح کې مسجد د مسلمانانو د عبادت ځاى دى پنځه وخته فرض مونځ او نور عبادات لکه اذکار، نصيحت ، وعظ پکې کيږي او هغه مسجد چې لوى وي هغه ته جامع مسجد ويل کيږي او هلته بيا د جمعې مونځونه هم اداء کيږي شرطونه او نورې اړوند خبرې يې زمونږ (د فقهي کتابونو له پانو څخه په دوهمه برخه) کې تېرې شوې دي او مسجد ته مسجد د همدې امله ويل کيږي چې دلته پکې سجدې کيږي امام زرکشي فرمايي : په مانځه کې نور ارکان هم وو لکن سجده پکې اشرف رکن دى پدې حالت کې بنده الله ته ډېر نږدې وي ځکه يې اسم مکان صرف دسجدې نه جوړ کړو او مرکع يې ونه ويل .

او مسجد هغه ابادي ده چې کله مدينه منوره د اسلام مرکز جوړ شو نو اول پکې د همدې بنياد کېښودل شو کله چې رسول الله د قباء کلي ته ورسېدو نو د خپل ځان لپاره د اقامت او

---

[1] الجامع لاحکام القرآن

هستوګنې د ځای د تعین ځخه یې وړاندې د مسجد قباء د تعمیر تېره کېښوده او کله چې د مدینې منورې مینځ ته را نقل شو هم تر هرڅه د مخه یې د مسجد نبوي د تعمیر لپاره ځای تعین کړو په اسلام کې تر ټولو نه معزز جوماتونه درى دي :

١. مسجد حرام (مکه مکرمه)

٢. مسجد نبوي (مدینه منوره)

٣. مسجد اقصى (قدس ، فلسطین)

رسول الله صلى الله علیه وسلم ددې دریو جوماتونو په اړه فرمایي :

**لا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلاَّ إِلَى ثَلاثَةِ مَسَاجِد: المَسْجِدِ الحَرَام وَمَسْجِدِي هَذَا وَالمَسْجِدِ الأَقْصَى**

ترجمه : سفر د نه کیږي یو جومات ته (ددې لپاره چې هلته پکې مونځ وکول شي او پدې تمه انسان هلته سفر وکوي چې هلته به مونځ ډیر غوره وي) مګر دریو جوماتونو ته مسجد حرام او دا زما جومات او مسجد اقصى . (یعني دى دریو ته د سفر وشي خیر دى ځکه پدې کې خاصې نکتې او غوره والى دى) .

# د جومات تاریخ

داسې وخت وو چې عرب په خپل جهالت کې تر غوږونو پورې ډوب شوي وو او هېڅ يې د هدايت لوري ته نه پام وو او نه د چا کوښښ وو چې د هدايت لور ته لاره ور پيدا کړي په همداسې حالت کې الله ددې امت په قسمت کې خير واچولو او دې امت ته يې په بهترين رسول او پيغمبر حضرت محمد باندې عزت ورکړو او د دنيا تر ټولو غوره او مکمل شريعت يې همدې امت ته را ولېږلو او د دوی په قسمت کې يې د مبارک او تل پاتې معجزه کتاب نزول هم وليکلو او هغه کتاب يې هم دوی ته را نازل کړو لکن څرنګه چې په هغه وخت کې په مکه مکرمه د جهالت انتها وه نو د مکې خلکو په سر کې د رسول الله ددې رڼا او هدايت مخالفت شروع کړو او تر خپلې وسې پورې يې د رسول الله د مخالفت څخه هېڅ شی دريغ نه کړل په مکه مکرمه کې مسلمانان ډېر کمزوري وو او په يو څو محدودو کسانو يې د ټولې مکې مقابله نشوای کولی ترڅو چې په همدې د ضعف په حالت کې ۱۳ کلونه تېر شول آخر الله رسول الله ته د مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته د هجرت اجازه ورکړه چې په هغه وخت کې ورته يثرب ويل کېدل او رسول الله د خپلو ملګرو سره په ورو ورو هلته نقل کېدل شروع شول او پدې هجرت سره د اسلام په

تاريخ کې يو نوى پړاو شروع شو بلکه داسې به ووايو چې لدې هجرت نه وروسته د اسلامي دولت قائم کېدل پيل شول رسول الله چې د الله را لېږل شوى پيغمبر او په ټولو نېکو صفاتو باندې موصوف مهربان ، مشفق او رښتونى معلم وو پدې پوه شو چې هغه کسان چې په دين کې نوي داخليږي د دين په اړه د هغوى معلومات چې په ډېره ښکته مرتبه کې وي دا د کمال حد ته رسول غواړي او دوى دېته اړتيا لري چې دوى ته اسلام او دين ور وښودل شي نو داسې يو ځاى ته ضرورت دى چې دوى پکې هلته کيني پکې جمع شي او هلته دوى ته د اسلام احکام درس کړل شي نو ځکه رسول الله چې څنګه مدينې منورې ته ورسېدو هلته يې د مسجد قباء د تعمير شروع وکوله حضرت انس ابن مالک ددې جومات د تعمير قصه کوي او فرمايي :

ترجمه : کله چې رسول الله مدينې منورې ته ورسېدو نو په يو کلي کې دمه شو چې هغه خلکو ته بَنُو عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ ويل کېدل او هلته يې څوارلس ورځې تېرې کړې بيا يې بني النجار خلکو ته احوال ور ولېږلو هغوى راغلل توري يې ځړولې وې (په تورو مسلح وو) ماته داسې ياد دي لکه زه چې دا اوس وينم رسول الله په خپله سپرلۍ ناست او حضرت ابو بکر پسې شاته ناست دى او د بني النجار خلک ترېنه تاو دي ترڅو چې د

حضرت ابي ايوب انصاري ځای ته ور ورسېدل د رسول الله خوښېدل چې چېرته د مانځه وخت وربانديې راشي هماغلته مونځ وکوي نو هلته رسول الله امر وکولو چې يو جومات د جوړ کړل شي نو يې د بني النجار څه مشرانو ته احوال ور ولېږلو ورته يې وويل : لما څخه ددې باغ قېمت واخلئ هغوی ورته وويل : نه ... مونږ ددې قېمت نه غواړو مونږ يې صرف له الله نه قېمت غواړو حضرت انس فرمايي : په هغه باغ کې داسې شيان وو چې زه درته وايم د مشرکينو قبرونه وو، خراب (لوړ او ژور) ځايونه وو او ونې وې رسول الله د قبرونو په کيندلو او لدې ځای څخه په لرې کولو امر وکولو او خرابې (لوړې او ژورې) چې وې د هغې په اړه يې د سمولو امر وکولو هغه همواري کړل شوې او هلته موجوده ونې پرې کړل شوې پرې کړل شوې ونې د قبلې لوري ته صف ودرول شوې او طرفونو ته تېږې پورته کړل شوې صحابه لګيا وو او کانې يې راوړل رسول الله هم ورسره لګيا وو او د رسول الله په مبارکه ژبه باندې دا شعر چلېدو او ويل يې :

اللَّهُمَّ لا خَيْرَ إِلا خَيْرُ الآخرهْ .......... فَاغْفِرْ لِلأَنْصَارِ وَالْمُهَاجِرَهْ [1]

ترجمه : ای الله نشته (رښتونی) خیر مګر د آخرت خیر دی ... ښنه وکوې انصارو ته او مهاجرینو ته .

لدې ورځې نه جومات د اسلام یوه مقدسه ابادي شوه او د مانځه ، عبادت ، اعتکاف او د رسول الله د تعلیماتو د زده کړې ځای شو .

## د جومات برخې

## محراب

المحراب په لغت کې غوره ځای ته ویل کیږي په کور کې چې کوم معزز ځای وي هغه ته محراب ویل کیږي لکه د عربي لغاتو په مشهور کتاب لسان العرب کې لیکلي دي **المِحْرابُ: صَدْرُ البَيْتِ، وأَكْرَمُ**

[1]صحیح البخاري

**مَوْضِعٍ فيه**، والجمع المَحارِيبُ (محراب د كور مركز ته ويل كيږي او په كور كې غوره ځاى ته ويل كيږي او جمع يې محاريب راځي) امام ابو حنيفه فرمايي : **المِحْرابُ أَكْرَمُ مَجالِس المُلوكِ** (محراب په لغت كې د بادشاه د عزت د كېناستلو ځاى ته ويل كيږي) او د جومات محراب ته هم محراب ويل كيږي چې په ټول جومات كې دا غوره ځاى وي امام په مانځه كې چې د ټولو خلكو مقتدا وي همدلته دريږي

د يو قول له مخې چې محراب هغه ځاى ته ويل كيږي چېرته چې زمرى اوسيږي عرب وايي : دخل فلان على الاسد فى محرابه (فلانى سړى په زمري ور ننوت چې هغه په خپل ځاى كې وو) او د جومات محراب ته ددې امله محراب ويل كيږي چې امام دلته ودريږي نو د غلطيا او د چا د اعتراض نه داسې ډاريږي لكه د زمري نه چې انسان د زمري په ځاى كې ډاريږي ... لكن دا لرې معنى ده .[1]

د اسلام نه وړاندې هم د محراب كلمه په اشعارو كې او د دوى په قصيدو كې كارول كېده لكن په هغه وخت كې يې څه ديني او اسلامي معنى نه وه

---

[1] **المحراب بين الجواز و الارتياب**

په قرآن کریم کې هم د محراب تکی استعمال شوی دی الله فرمايي :

فَخَرَجَ عَلَىٰ قَوْمِهِ مِنَ الْمِحْرَابِ فَأَوْحَىٰ إِلَيْهِمْ أَنْ سَبِّحُوا بُكْرَةً وَعَشِيًّا [1]

ترجمه : پس ووت (زکریا علیه السلام) پر قوم خپل له خپل محراب (حجرې یا د عبادت ځای) څخه پس اشاره يې وکړه دوی ته داسې چې تسبیح وایاست تاسې په صبا او بیگاه کې .

نو لکه په ترجمه کې چې ښکاره شوه په قرآن کریم کې چې ذکر شوی دی هم هلته يې معنی دا محراب نه ده ځکه دا محراب په هغه وخت کې موجود نه وو هلته يې معنی ده چې د خپل کېناستلو له ځای نه .

او اوس په اسلامي شریعت کې محراب په جوماتو کې د قبلې لور ته تر نور دېوال څخه وتلي ځای ته ویل کیږي غالباً د نیمې دائرې په شکل وي د رسول الله په جوماتو کې محراب نه وو البته یو روایت داسې شته چې رسول الله په خپله کوټه کې چې مونځ کولو نو هلته یې ځان ته په دېوال نښه کړې وه خو هغه هم د داسې محراب په څېر نه وه

[1] سورة مریم آية ۱۱

لکه اوس چې زمونږ په جوماتونو کې دي او په جوماتونو کې محراب تر ټولو د مخه حضرت عثمان په مسجد نبوي کې جوړ کړو لکن دهغه محراب هم صرف نښه وه .[1]

او داسې محراب چې د دائرې په شکل کې د قبلې لور ته وتلی وي دا هغه وخت جوړ شو کله چې حضرت عمر ابن عبد العزيز په مدينه منوره باندې د خليفه وليد بن عبد الملک له لوري والي کړل شو په ۸۷ هجري کې خليفه وليد د مسجد نبوي د تعمير په اړه ورته يو ليک واستولو چې ورته يې پکې ليکلي وو د بيبيانو کوټې په جومات کې ور داخلې کړه او يا په شاوخوا کې زمکه ورته واخله ترڅو جومات سل په سلو مترونو کې پوره شي او د قبلې لورى له نورو ديوالونو څخه ښه ښکاره کړه بيا حضرت عمر ابن عبد العزيز د مساحت په اړه همداسې وکول او د قبلې لوري د ښه ښکاره کولو لپاره يې محراب پکې جوړ کړو د مدينې منورې څه مشران مهاجر او انصار عرب او عجم (چې هلته اوسېدل) يې را وغوښتل ورته يې وويل راشئ وګورئ بيا ونه واياست چې عمر زمونږ قبله بدله کړه نو د محراب په جوړولو يې شروع وکوله چې يو کانى به يې له يو ځاى نه لرې کړو نو د هغه په ځاى به

---

[1] المساجد فى الاسلام شيخ طه الولي

یې بل کانې کېښودو (ترڅو پدې رنګولو او بېرته جوړولو کې قبلې ته تغیر ورنشي) او بالآخره یې په مسجد نبوي کې محراب جوړ کړو .[1]

نو د پورتنیو نظریو څخه دا ښکاره کیږي چې د اول ځل لپاره محراب حضرت عثمان تعین کړی وو لکن هغه مجوف (مینځ خالي) نه وو او حضرت عمر ابن عبد العزیز هغه مجوف کړو (مینځ یې ور خالي کړو لکه څرنګه چې زمونږ اوسني محرابونه دي) .

## په جومات کې د محراب فایدې

⇦ د قبلې طرف له ورایه ښکاره کیږي هغه څوک چې د لمړي ځل لپاره هم جومات ته ننوزي نو د محراب نه معلوموي چې قبله کوم لوري ته ده .
⇦ د جمع په دریدلو کې د امام د دریدلو ځای معلوم دی او امام محراب ته مخامخ دریږي .
⇦ کله چې بېړ بار وي (لکه د جُمعې په مانځه کې یا په بل داسې حالت کې) نو د ځای په زیاتوالي کې مرسته کوي ځکه په رکوع او سجده کې د امام سر د محراب په ګېډه کې وي .[2]

---

[1] وفاء الوفا باخبار المصطفی للسمهودي
[2] المساجد فی الاسلام لطه الولي

⇦ دا دائره کېدل يې د امام د اواز په پورته کولو کې مرسته کوي او په خاصه توګه هغه وخت چې لاسپيکر نه وو اختراع شوی دا فايده يې ډېره لويه فايده وه او اوس هم چېرته چې خلک ډېر وي او د مانځه لپاره لاسپيکر نه استعماليږي نو محراب د اواز په پورته کو لو کې ډېره مرسته کوي .[1]

## منبر

په مدينه منوره کې رسول الله ﷺ به چې کله صحابه وو ته خبرې کولې نو ولاړ به وو کله به چې خبرې اوږدې شوې نو رسول الله ﷺ به د ستړيا احساس کاوه نو د خورما يو وچ ډډ (تنه) راوړل شو او هلته ځای ورته ژور کړل شو او دا پکې ودرول شو نو رسول الله ﷺ به چې کله خبرې اوږدې کړې نو د خورما تنې ته به يې تکيه وکوله يو کس چې مدينې منورې ته راغلی وو ويې ليدل چې رسول الله ﷺ ولاړ دی او چې کله د ستړيا احساس وکوي نو د خورما ډډ ته تکيه کوي نو خپلو نېږدې کسانو ته يې وويل که رسول الله ﷺ وغواړي نو زه داسې يو شی ورته جوړولی شم چې هغه لوړ وي که يې خوښه وي نو رسول الله ﷺ به

---

[1] تاريخ المساجد الاثرية

ولاړ وي خبرې به کوي او که يې خوښه وي په هغه به کيني (بيا به هم خلکو ته ښکاره کيږي) نو رسول ﷺ ته چې دا خبره ورسېده ويل يې دا کس ماته راولئ چې ورته حاضر کړل شو رسول ﷺ ورته وويل چې جوړ يې کړه راته نو داسې يو پايې پايې منبر يې ورته جوړ کړو لکه اوس چې زمونږ په جوماتونو کې موجود دی دوه زينې وې د ختلو لپاره او دريمه پوړۍ د کېناستلو لپاره وه رسول ﷺ چې کله د خورما دډ پرېښودو او منبر ته لاړو ددې وچ لرګي نه لکه د ژړا داسې اواز پورته شو او داسې اواز يې کولو لکه اوښه چې اواز کوي رسول ﷺ چې دا اواز واورېدو نو ورته راغلو لاس يې وربانډې کېښودو ورته يې وويل : ته خوښ کړه که غواړې په هغه ځای کې به دې نيال کړم چېرته چې وې نو له سره به تازه شې او مېوه به کوې او که غواړې په جنت کې به د نيال کړم د جنت له نهرونو او د جنت له اوبوڅخه به د څښاک وي او مېوه به کوې د الله خاص بندګان به ستا مېوه خوري؟ بيا رسول ﷺ دوه ځله وويل هو صحيح ده همداسې کوم کله چې ورڅخه پوښتنه وشوه چې تاسې ورته دا ولې وويل ؟ رسول ﷺ وويل چې هغې دا غوره کړه چې په

دنیا کې دي همداسې وم او په جنت کې مې نیال کړه .[1]

رسول الله به ددې منبر په دریمه پوړۍ کې کېناستلو او هلته دواړو طرفونو ته لرګي وو خپل مبارک لاسونه به یې په هغه لرګیو ایښي وو او خپلې مبارکې پښې به یې په دوهمه پوړۍ کې ایښې وې کله چې حضرت ابو بکر الصدیق خلیفه شو نو هغه به په دوهمه پوړۍ کې کېناستلو او پښې به یې په ا وله پوړۍ کې ایښې وې او کله چې حضرت امیر المؤمنین عمر ابن الخطاب خلیفه شو نو هغه به په اوله پوړۍ کې کیناستو او پښې به یې په زمکه ایښې وې او کله چې حضرت عثمان خلیفه شو نو شپږ کاله د حضرت عمر په ځای کېناستو بیا بېرته د رسول الله په ځای باندې کېناستو او حضرت عثمان اول هغه کس وو چې منبر ته یې قیمتي جامه (قبطیه) ور واغوستله او په جامه کې یې پټ کړو.

## مناره

مناره د جومات هغه لوړه ابادي وي چې د لرې ځای نه معلومېږي او په هغه وخت کې چې لاسپیکر نه وو اختراع شوی نو اذان کونکی به د جومات

---

[1] **سنن الدارمي**

مناري ته ختلو او اذان به یې کولو ترڅو ډېرو خلکو ته د اذان اواز ور ورسیږي او چې کله لاسپیکر د اذان لپاره کارول شروع شول نو سهولت نور هم زیات شو چې مناره لوړه وي او اذان کونکی په جومات کې وي او لاسپیکر د منارې په سر کې ولګول شي بیا یې اواز تر ډېرو ځایونو پورې رسېدلی شي .

د اسلام په شروع کې د رسول الله په جومات کې منارې نه وې او جومات لوړ برجونه او لوړه ابادي هم نه درلوده بسیطه ابادي وه اذان کونکی به د جومات بام ته او یا ورسره په خوا کې بل لوړ ځای ته ختلو او اذان به یې کولو د وخت په تېرېدلو سره د رسول الله جومات هغه وخت مناره پیدا کړه چې د ۸۸ او ۹۱ هجري کلونو په دوران کې حضرت عمر ابن عبد العزیز په مدینه منوره باندې د خلیفه ولید بن عبد الملک له لوري نه والي شو خلفه ولید چې والي حضرت عمر ابن عبد العزیز ته د رسول الله د جومات د تعمیر د تازه کولو په اړه یو لیک لیږلی وو (د محراب په بحث کې یاد کړل شو) په هغه کې لیک کې یې یوه خبره دا هم ورته کړې وه چې د جومات په څلورو طرفونو کې منارې جوړې کړه نو په هغه وخت کې ورته منارې جوړې کړل شوې وې چې د شاو خوا ۲٦.٥٠ شپږ ویشت اعشاریه پنځوس او

۲۷.۵۰ اوه ویشت اعشاریه پنځوس مترونو کې یې لوړ والی وو او څلور متره په څلورو کې یې مساحت وو د هغه وخت نه وروسته مناري د مسجد نبوي ضروري برخه شوې نو کوم امیر به چې ددې جومات له سره نه تجدید او توسیع کوله نو منارو ته به یې پکې خاصه پاملرنه کوله او له همدې ځای نه په اسلامي جوماتونو کې د منارو جوړول روان اوشروع شول په او وس وخت کې تر ټولو نه زیاتې مناري مسجد نبوي لري چې ۱۰ مناري لري او بیا مسجد الحرام (مکة المکرمة) ۹ مناري لري او بیا المسجد الازرق په استنبول ښار کې دی هغه شپږ مناري لري او په موجوده وخت کې تر ټولو نه لوړه او عالیشانه مناره د مسجد الحسن الثاني ده چې په المغرب (عربي ملک) په دار البیضاء سیمه کې واقع دی دا جومات چې په ۱۹۹۳ کې جوړ شوی دی د ۲۵۰۰۰ پنځه ویشت زرو مونځ کونکو لپاره ځای لري په المغرب کې تر ټولو نه لوی جومات دی او په ټوله دنیا کې د مساحت په اعتبار باندې اوم جومات دی لکن د منارې په اعتبار باندې تر ټولو نه وړاندی دی مناره یې ۲۱۰ متره لوړ والی لري او په موجوده دور کې په اسلامي بناء ګانو او منارو کې تردې لوړه مناره او ابادي نشته پدې پسې بیا جامع الفتح په القاهرة (مصر) کې دی دهغه مناره ۱۳۰ متره لوړه ده د

مسجد نبوي نوې منارې ۱۰٤ متره ارتفاع لري د مسجد حرام منارې ۹۲ متره لوړې دي .

## گنبد

د جومات په تعمیر کې گنبد په اصل کې د جومات چت وي چې د خالي نیمې کرې په شکل په ستنو (پایو) او یا دېوالونو باندې ولاړ وي رسول ﷺ چې کله په مدینه منوره کې خپل مبارک جومات جوړ کړو په هغه وخت کې د گنبدو د جوړولو دود او دستور نه وو په ساده طریقه یې د جومات چت جوړ کړی وو چې د خورما ډډونه (د خورما تنې) په چت اچول شوې وې او د هغې د پاسه نور شیان او بیا خاوره اچول شوې وه او د جومات چت پدې طریقه سره پټ کړل شوی وو د اسلام د مبارک دین له راتلو څخه وروسته اوله گنبده په مسجد الصخرة (چې په القدس ښار فلسطین کې دی) د خلیفه عبد الملک بن مروان له لوري په ۷۲ هجري کې جوړه شوه خو هغه ساده د لرگي نه جوړه گنبد وه .

او د رسول ﷺ په حجره مبارکه باندې گنبد (القبة الخضراء (شینکۍ گنبد)) د هجرت په ٦٧٨ کال کې د المنصور سیف الدین قلاون الصالحي نومي بادشاه په وخت کې جوړه کړل شوه ترڅو حجره مبارکه له نور جومات څخه بېله ښکاره شي

دا ګنبد چې وروسته په شنه ګنبد (القبة الخضراء) باندې و نومېده د لرګي نه جوړه شوې وه په بيخ کې څلور ضلعي او په سر کې په آتو ضلعو مشتمله وه د حجرې مبارکې چت يې پټ کړی وو د پاسه وربانديې د مسو تختې کېښودلې شوې وي ترڅو د باران د اوبو حجرې مبارکې ته د ورتللو مخه ونيسي بيا مختلف ځله ددې ګنبد تعمير تازه کړل شو په ١٢٢٨ هجري کې السلطان محمود الثاني العثماني دا ګنبد نوې کړه او لپاسه يې شين رنګ ورکړو لدی ځای نه په شنه ګنبد (القبة الخضراء) باندې مشهوره شوه چې تر اوسه پورې يې هماغه شين رنګ دی.

## د جومات د تعمير فضيلت

**إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ فَعَسَى أُولَئِكَ أَنْ يَكُونُوا مِنَ**

ترجمه : بېشکه همدا خبره ده چې ودانوي (په عبادت ، ناسته ولاړه او تعمير سره) مسجدونه د الله هغه څوک چې ايمان يې راوړی وي په الله او په ورځې آخرې (د قيامت) او قائموي (سم اداء کوي سره د ټولو حقونو) مونځ او ورکوي زکوة او نه ويريږي (په دغه ديني کارونو کې له هيچا) مګر

لـه الله ﷻ څخه ، نـو اميـد دی چې دغه کسان بـه وي لـه سمې لارې مـونـدونـکو ځنې.

رسول الله ﷺ فـرمـايـي :

**مَنْ بَنَى مَسْجِدًا بَنَى اللَّهُ لَهُ مِثْلَهُ فِي الْجَنَّةِ .** [1]

تـرجمـه : چـا چې جـومـات جـوړ کـړو الله ﷻ بـه ورتـه پـه همدې ډول پـه جـنت کې جـوړ کـړي

پـه بـل حديـث کې رسول الله ﷺ فـرمـايـي :

**مَنْ بَنَى مَسْجِدًا لِلَّهِ كَمَفْحَصِ قَطَاةٍ ، أَوْ أَصْغَرَ ، بَنَى اللَّهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ.** [2]

تـرجمـه : چـا چې جـومـات جـوړ کـړو اګـر کـه هغـه دومـره وړوکـی وي لـکـه د قـطـاة مـارغـه د هګی اچـولـو ځـای او يـا ددې نـه هـم وړوکـی وي (ډيـر وړوکـی جـومـات هـم وي) نـو الله ﷻ بـه پـه جـنت کې ورتـه کـور جـوړ کـړي .

پـه پـورتـنـي حديـث کې مفـحص الـقـطـاة (د مـارغـه د هګی د اچـولـو ځـای) يـا خـو مبـالـغـه ده پـه

---

[1] بـخـاري او مـسـلـم
[2] ابـن مـاجـه

وړوکوالی کې یعني که څومره وړوکی جومات هم وي نو الله یې په عوض کې په جنت کې کور ورته جوړوي او یا یې ظاهري معنی مراد ده یعني چې څو کسان شریک شي او په شریکه سره یو جومات جوړ کړي او هر یو ته پکې دومره برخه ور ورسیږي لکه د مارغه د هګۍ د اچولو ځای نو بیا هم الله ورته په بدل کې کور جوړوي .[1]

نو هغه کسان چې خپله مستقل جومات نشي جوړولی او هغوی د بل چا سره د جومات په جوړولو کې شرکت وکولو نو الله به یې د شرکت په اندازه اجر ورکړي د سعودي عالم مرحوم شیخ ابن عثیمین څخه پوښتنه وشوه کوم کس چې ځان ته مستقل جومات نشي جوړولی او له بل چا سره د جومات په جوړولو کې شریک شي نو د هغه لپاره څه اجر دی ؟ هغه ورته وفرمایل : تا سورة ا لزلزلة لوستلی دی هلته الله فرمایي :

فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْراً يَرَهُ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرّاً يَرَهُ [2]

ترجمه : پس هغه څوک چې عمل کوي په اندازه د یوې ذرې د خیر نیکي نو وبه ویني (جزاء د هغه)

---

[1] **فتح الباري**
[2] **سورة الزلزلة آیة ۷ او ۸**

او هغه څوک چې عمل کوي په اندازه د يوې ذرې د شر بدي نو وبه ويني (سزاء د هغه)

يعني هر انسان ته به د ده د عمل ذره ذره دده مخې ته کېښودل کيږي که هغه ښه وي او که بد او الله چې د دوی د هر ښه او يا هر بد عمل په اړه هر ډول فيصله اجراء کوي هغه به هم دوی ته ورښکاره کوي .

همدارنګه هغه څوک چې د جومات په تعمير کې شرکت وکوي دده لپاره دوهم اجر هم شته چې د نورو خلکو سره د نېک کار په کولو کې يې مرسته وکوله او دا ټول شريک کسان چې سره شريکان شول نو کار وشو او که ځان ځان ته دوی هرڅومره کوښښ کړی وای نو تعمير نشوای کېدلی .

## د جومات فضيلت

**عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : أَنَّ رَسُولَ اللهِ ـ صلى الله عليه وسلم ـ قَالَ :أَحَبُّ الْبِلاَدِ إِلَى اللهِ مَسَاجِدهَا ، وَأَبْغَضُ الْبِلاَدِ إِلَى اللهِ أَسْوَاقهَا.** [1]

ترجمه : د حضرت ابي هريره **رَضِيَ اللهُ عَنْهُ** څخه روايت دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل : الله ته په

[1] **أخرجه مسلم**

تولو ځایونو کې محبوب ځایونه جوماتونه دي او د چې الله نه خوښیږي هغه ځایونه بازارونه دي.

**عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صلى الله عليه وسلم - يَقُولُ : الْمَسْجِد بَيتُ كُلّ تَقِيّ .** [1]

د جمات فضیلت او په اسلام کې لوړه درجه ددې نه ښه ښکاره کیږي لکه لږ مخکې تېر شول چې کله رسول الله مدینې منورې ته په سفر لاړو کله چې حي بني عمرو بن عوف ته چې په قباء کې وو ورسېدو تر هغه وخته پورې یې چېرته د ځان پاره د اوسېدلو ځای تعین نه کړو ترڅو یې چې د مسجد قباء په جوړښت باندې شروع نه وه کړې او مسجد قباء په مدینه منوره کې لمړی جومات دی چې جوړ شوی دی او په اسلام کې هم اول هغه جومات دی چې د عامو خلکو لپاره په ښکاره ډول سره جوړ شو دی . [2]

همدارنګه کله چې رسول الله د مدینې منورې زړه ته ورسېدو اول کار چې رسول الله وکولو هغه دا وو چې د مسجد نبوي د تعمیر لپاره یې زمکه خاصه او معلومه کړه او رسول الله به چې هر

---

[1] أخرجه أبو نعيم في الحلية
[2] البداية و النهاية

كله چېرته په سفر لاړو نو چې د لږ وخت لپاره به هم چېرته پاتې کېدو نو هلته به يې جومات جوړ کړو د خپلو صحابه وو سره به يې پکې مونځ کولو لکه په خيبر کې يې چې کړي وو .[1]

عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ،عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : أَحَبُّ الْبِلَادِ إِلَى اللَّهِ مَسَاجِدُهَا ، وَأَبْغَضُ الْبِلَادِ إِلَى اللَّهِ أَسْوَاقُهَا

د حضرت ابي هريره نه روايت دى هغه د رسول الله نه روايت کوي چې هغه فرمايل : الله ته په ټولو ځايونو کې محبوب ځايونه جوماتونه دي او د الله په نيز بد ترين ځايونه بازارونه دي .

عن جبير بن مطعم - رضي الله عنه - : " أنَ رجلا قال : يا رسول الله ! أي البلدان أحب إلى الله ؟ وأي البلدان أبغض إلى الله ؟ " قال : لا أدري , حتى أسأل جبريل - عليه السلام , فأتاه جبريل , فأخبره : أن أحسن البقاع إلى الله المساجد , وأبغض البقاع إلى الله الأسواق ) .[2]

---

[1] **وفاء الوفاء باخبار المصطفى للسمهودي**
[2] **صحيح الترغيب**

ترجمه : د حضرت جبير بن مطعم نه روايت دى چې يوه سړي وويل : يا رسول الله ! په ځايونو کې کوم ځايونه الله ته ډېر ګران دي؟ او کوم ځايونه د الله نه خوښيږي؟ رسول الله ورته وويل ماته معلومات نشته زه به د جبريل عليه السلام نه پوښتنه وکوم بيا جبريل عليه السلام راغلو هغه ورته وويل : بېشکه غوره ځايونه د الله په نيز جوماتونه دي او بدځايونه د الله په نيز بازارونه دي .

عنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ : سَبْعَةٌ يُظِلُّهُمْ اللَّهُ فِي ظِلِّهِ يَوْمَ لا ظِلَّ إِلا ظِلُّهُ : الإِمَامُ الْعَادِلُ ، وَشَابٌّ نَشَأَ فِي عِبَادَةِ رَبِّهِ ، وَرَجُلٌ قَلْبُهُ مُعَلَّقٌ فِي الْمَسَاجِدِ ، وَرَجُلَانِ تَحَابَّا فِي اللَّهِ اجْتَمَعَا عَلَيْهِ وَتَفَرَّقَا عَلَيْهِ ، وَرَجُلٌ طَلَبَتْهُ امْرَأَةٌ ذَاتُ مَنْصِبٍ وَجَمَالٍ فَقَالَ إِنِّي أَخَافُ اللَّهَ ، وَرَجُلٌ تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ فَأَخْفَاهَا حَتَّى لا تَعْلَمَ شِمَالُهُ مَا تُنْفِقُ يَمِينُهُ ، وَرَجُلٌ ذَكَرَ اللَّهَ خَالِيًا فَفَاضَتْ عَيْنَاهُ " [1]

ترجمه : د حضرت ابي هريره څخه روايت دى هغه فرمايي رسول الله فرمايل اوه کسان دي چې الله به په هغه ورځ په خپل سيوري کې ځاى ورکړي په

---

[1] متفق عليه

کومه ورځ چې د الله د سیوري نه بغیر بل سیوری نه وي ۱. عادل امام ۲. ځوان چې د الله په عبادت کې وي ۳. هغه سړی چې زړه یې تر جومات پورې تړلی وي (هر وخت د جومات او جومات د تلو فکر ورسره وي) ٤. هغه دوه سړي چې د الله لپاره یو له بل سره مینه کوي او په همدې سره جمع کیږي او په همدې سره جدا کیږي ٥. هغه سړی چې یوه د لوړې کورنۍ او ښه جمال لرونکې ښځه دده څخه مطالبه وکوي او دی ورته ووایي چې زه له الله نه ډارېږم (بد عملي نه کوم) ٦. هغه سړی چې صدقه کوي او داسې یې پټه وکوي چې په ښي لاس یې صدقه کړي چپ لاس یې ترې خبر نشي ۷. هغه سړی چې یوازې د الله ذکر وکوي له سترګو یې اوښکې راشي .

عن أبي الدرداء -رضي الله عنه- قال: سمعت رسول الله -صلى الله عليه وسلم- يقول" :المسجد بيت كل تقي، وتكفل الله لمن كان المسجد بيته بالروح والرحمة، والجواز على الصراط إلى رضوان الله، إلى الجنة.[1]

ترجمه : د حضرت ابي الدرداء نه روایت دی هغه فرمایي ما درسول الله څخه واورېدل چې

---

[1] **رواه الطبراني والبزار وصحّحه الألباني**

فرمایل یې : جومات د هر نېک سړي کور دی او د چا چې جومات کور وي الله د هغه کفالت کوي په روح او رحمت سره او په پل صراط باندې د تېریدلو د جواز (اجازې) سره چې د الله تعالی د رضا ځای او جنت ته لاړ شي .

د حضرت عبد الله ابن عباس نه روایت دی هغه فرمایي : إن هذه المساجد تضيء لأهل السماء ، كما تضيء النجوم لأهل الأرض .[1]

ترجمه : بېشکه دا جوماتونه په (زمکه باندې) رڼا کوي د اسمان مخلوق ته لکه په اسمان کې چې ستوري رڼا کوي (ځلاند ښکاري) د زمکې خلقو ته

## جومات ته د تللو فضیلت

عن أبي هريرة رضي الله عنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال " لا يزال أحدكم في صلاة ما دامت الصلاة تحبسه لا يمنعه أن ينقلب إلى أهله إلا الصلاة "

ترجمه : د حضرت ابي هریره نه روایت دی چې رسول الله فرمایل : په تاسې کې یو کس تر هغه

[1] **تفسير قرطبي**

وختـه پـورې پـه مـانـځه کې حسابـيـږي تـرڅو چې هغه مـانـځه مـنع كړى وي (كـور تـه لـه تـلـو څخه) او كـور تـه لـه تـلـو نـه يې صرف مـونـځ را مـنع كـوي. (نـو دا كـه هرڅومـره وخت پـه همداسې حـالـت كې پـاتې شو نـو دا ټـول وخت دده لـپـاره پـه مـانـځه كې حسابـيـږي)

وقـال صلـى الله عـلـيـه وسلـم " ألا أدلـكم عـلـى مـا يـمحوا الله بـه الـخطـايـا ويـرفـع بـه الـدرجـات ؟ قـالـوا : بـلـى يـا رسول الله ، قـال : إسبـاغ الـوضوء عـلـى الـمكـاره ، وكـثـرة الـخطـا إلـى الـمساجـد وانـتـظـار الـصلاة بـعـد الـصلاة فـذلـكم الـربـاط .[1]

پـه بـل ځـاى كې رسول الله فـرمـايـي : آيـا زه تـاسې تـه ونـه ښـايـم چې الله ګـنـاهونـه پـه څه شي سره ختمـوي او درجې پـه څه شي سره پـورتـه كـوي؟ صحابـه وو ورتـه وفـرمـايـل هو راتـه وښـايـه يـا رسول الله .

رسول الله ورتـه وفـرمـايـل : پـه سختـيـو كې ښه اودس كـول ، جومـات تـه زيـات قـدمـونـه اخستـل او د يـو مـانـځه څخه وروستـه د بـل مـانـځه لـپـاره انـتـظـار ويـستـل او همدا ربـاط دى (ربـاط پـه اصل كې ديـتـه وايـي چې يـوڅـوک ځـان پـه كـوم شي پـورې بـنـد كړل ي

---

[1] **رواه مسلم**

او چې کله هر وخت يو انسان د يو مانځه څخه وروسته د بل مانځه انتظار کوي او بيا بيا وخت ته ګوري چې هسې نه ورپسې جمع را څخه تېره نشي او يا ناوخته نشي نو ګواکي ده هم خپل ځان تر مانځه پورې بند کړو او دا رباط الله ته ډېر ګران دی ) .

عن عَبْد اللَّهِ بْنَ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ رضي الله عنه قال: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ رَاحَ إِلَى مَسْجِدِ الْجَمَاعَةِ فَخَطْوَةٌ تَمْحُو سَيِّئَةً وَخَطْوَةٌ تُكْتَبُ لَهُ حَسَنَةٌ ذَاهِبًا وَرَاجِعًا .[1]

ترجمه : د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص نه روايت دی هغه فرمايي : رسول الله فرمايل : څوک چې د جماعت جوماتت ته لاړ شي نو هر قدم يې دده څخه يوه ګناه لري کوي او بل قدم يې دده لپاره يوه نيکي ليکي په تلو او بېرته په راتلو کې .

عن أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قال: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي الْجَمَاعَةِ تُضَعَّفُ عَلَى صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ وَفِي سُوقِهِ خَمْسًا وَعِشْرِينَ ضِعْفًا، وَذَلِكَ أَنَّهُ إِذَا تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَسْجِدِ لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا الصَّلَاةُ،

[1] صحيح الترغيب و الترهيب

لَمْ يَخْطُ خَطْوَةً إِلَّا رُفِعَتْ لَهُ بِهَا دَرَجَةٌ وَحُطَّ عَنْهُ بِهَا خَطِيئَةٌ .[1]

ترجمه : د حضرت ابي هريره نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله فرمايل : د يو سړي مونځ په جمع سره پنځه ويشت چنده غوره دى له هغه مانځه څخه چې دى يې په کور کې او يا په بازار کې کوي او دا ځکه چې کله دى اودس وکوي او ښه اودس وکوي بيا جومات ته وزي او جومات ته صرف د مانځه لپاره وزي نو دده په هر قدم سره دده يوه مرتبه پورته کيږي او يوه ګناه ورڅخه لرې کيږي .

امام مسلم د حضرت جابر بن عبد الله نه روايت کړى دى هغه فرمايي :

أراد بنو سلمة أن يتحولوا إلى قرب المسجد قال : والبقاع خالية . فبلغ ذلك رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال : ( يابني سلمة دياركم تكتب آثاركم ) .[2]

ترجمه : بنو سلمه قبيلې اراده وکوله چې د مسجد نبوي خوا ته نېږدې راشي او دلته خالي

---

[1] بخاري و مسلم
[2] صحيح مسلم

ځایونه وو ددې خبرې نه رسول ﷲ خبر شو رسول ﷲ هغوی ته وفرمایل : ای د بني سلمه خلکو په خپلو ځایونو کې پاتې شئ ستاسې جومات ته راتلل هر قدم په تاسې پسې د نېکیو په کتاب کې لیکل کیږي .

یقول الإمام النووي في شرح قوله علیه الصلاة والسلام أي الزموا دیارکم فإنکم إذا لزمتموها کتبت آثارکم وخطاکم الکثیرة إلی المسجد ....

ترجمه : امام نووي رحمه ﷲ فرمایي د رسول ﷲ ددې قول ( الزمو دیارکم ...) معنی داده چې تاسې په خپل ځای کې پاتې شئ چې تاسې په خپل ځای کې پاتې شئ نو ستاسې قدمونه به جومات ته د تلو را تلو په وخت کې ولیکل شي.

عن أبي امامة رضي ﷲ عنه قال : قال رسول ﷲ صلی ﷲ علیه وسلم : ( من خرج من بیته متطهرا إلی صلاة مکتوبة فأجره کأجر الحاج المحرم ). [1]

ترجمه : د حضرت ابي امامة نه روایت دی هغه فرمایي : رسول ﷲ فرمایل هغه څوک چې د کور

---

[1] **الإمام احمد والإمام أبو داوود**

نه پداسې حالت کې وزي چې ځان يې پاک کړی وي او د فرض مانځه د اداء کولو لپاره وزي نو د هغه اجر دومره دی لکه د حاجي چې په احرام کې وي.

عَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ حَبِيبٍ عَنْ أَبِى أُمَامَةَ الْبَاهِلِىِّ عَنْ رَسُولِ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ:ثَلاَثَةٌ كُلُّهُمْ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ رَجُلٌ خَرَجَ غَازِيًا فِى سَبِيلِ اللَّهِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُ فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيمَةٍ وَرَجُلٌ رَاحَ إِلَى الْمَسْجِدِ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ حَتَّى يَتَوَفَّاهُ فَيُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ أَوْ يَرُدَّهُ بِمَا نَالَ مِنْ أَجْرٍ وَغَنِيمَةٍ وَرَجُلٌ دَخَلَ بَيْتَهُ بِسَلاَمٍ فَهُوَ ضَامِنٌ عَلَى اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ . [1]

ترجمه : د حضرت سليمان بن حبيب نه روايت دی هغه د ابي امامة الباهلي نه روايت کړی دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل : دری کسان دي چې الله د هغوی ضامن دی:

۱. هغه سړی چې د الله په لاره کې جهاد ته وزي الله يې ضامن دی يا به يې وفات کړي جنت ته به

[1] ابو داود

يې بوزي او يا به يې د اجر او غنيمت سره كور ته ستون كړي .

٢. هغه كس چې د كور نه جومات ته د مانځه لپاره وزي الله يې ضامن يا به يې وفات كړي او جنت ته به يې ننباسي او يا به يې د اجر او غنيمت (فايدې) سره بېرته خپل كور ته ستون كړي .

٣. بل هغه كس دى چې كور ته د ننوتلو په حالت كې سلام واچوي او له سلام سره كورته ننوزي الله د هغه هم ضامن دى (الله يې ساتنه كوي) .

فعن أبي هريرة قال: قال رسول الله : { من غدا إلى المسجد أو راح، أعدّ الله له في الجنة نزلاً كلما غدا أو راح [1]

ترجمه : د حضرت ابي هريره څخه روايت دى هغه فرمايي رسول الله فرمايل : څوک چې د سبا يا ماښام په وخت كې جومات ته ځي الله په جنت كې يو ځاى ورته جوړوي هر وخت چې دى جومات ته ځي .

[1] رواه البخاري ومسلم

عن عقبة بن عامر الجهني عن النبي قال: { من خرج من بيته إلى المسجد كتب له الملكان بكل خطوة يخطوها عشر حسنات.. والقاعد في المسجد ينتظر الصلاة كالقانت ويكتب من المصلين حتى يرجع إلى بيته }.

ترجمه : د حضرت عقبة بن عامر الجهني څخه روايت دی هغه له رسول الله څخه روايت کوي چې هغه فرمايل : څوک چې له کور نه د جومات په لوري وزي نو دوه ملکې ده ته د هر قدم په بدل کې لس نيکيانې ليکي او هغه کس چې په جومات کې ناست وي د مانځه انتظار کوي دا لکه قانت (همېشه اطاعت کونکی داسې دی) او ترڅو چې کور ته نه وي راغلی تر هغه وخته پورې د مونځ کونکو څخه حسابيږي.

هغه کسان چې په تياره کې (چې غالباً تکليف وي ) جومات ته ځي رسول الله د قيامت په ورځ د رڼا زيرىورکړى دى د حضرت بريده نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله فرمايل : بشّروا

المشائين في الظلم إلى المساجد بالنور التام يوم القيامة . [1]

ترجمه : زيری ورکړئ هغه کسانو ته چې په تياره کې جوماتونو ته ځي د قيامت په ورځ د مکملې رڼا .

حضرت ابي سعيد الخدري د رسول الله نه يو حديث قدسي نقل کړی دی چې الله فرمايي :

إنّ بيوتي في أرضي المساجد، وإنّ زوّاري فيها عمّارها، فطوبى لعبد تطهّر في بيته ثم زارني في بيتي فحقّ على المزور أن يكرم زائره

**ترجمه : بېشکه زما کورونه زما په زمکه کې جوماتونه دي او هغه څوک چې زيارت يې کوي جوړونکي يې دي نېک بختي ده هغه بنده لره چې ځان په خپل کور کې ښه پاک کړي بيا راشي زما کور ته زما د زيارت لپاره نو څوک چې د چا زيارت ته ورشي په کوربه باندې لازم دي چې د خپل زيارت کونکي (مېلمه) عزت وکوي.**

---

[1] **أبو داود والترمذي**

حضرت ابو سعيد الخدري      فرمايي رسول الله فرمايل :

ذا رأيتم الرجل يعتاد المساجد فاشهدوا له بالإيمان، قال الله تعالى: إنما يعمر مساجد الله من آمن بالله واليوم الآخر.. الآية.[1]

**ترجمه : كله مو چې يو كس وليدو چې د جومات معتاد وو (جومات ته مقيد تللو) نو تاسې دده لپاره د ايمان گواهي وركړئ ځكه الله فرمايي (بېشكه آبادوي (په عبادت، ذكر او تلاوت سره) جوماتونه د الله هغه كسان چې ايمان يې راوړى وي په الله او په ورځ د آخرت .**

**د حضرت ابي هريره ښخه روايت دى هغه فرمايي :**

أتى النبي صلى الله عليه وسلم رجل اعمى فقال: يا رسول الله      ليس لي قائد يقودني الى المسجد، فسأل رسول الله أن يرخّص له فيصلي في بيته، فرخّص له، فلما ولى دعاه فقال له: هل تسمع

---

[1] رواه الترمذي.

النداء بالصلاة؟ قال: نعم، قال:" فأجب". [1]

**ترجمه :** رسول الله **ته يو كس راغلو چې په ستړگو ړوند وو ورته يې وويل : يا** رسول الله **زما داسې څوک نشته چې ما جومات ته راولي بيا يې د** رسول الله **څخه وغوښتل كه ده ته اجازه وكوي چې دى مونځ په كور كې وكوي نو** رسول الله **ورته ا جازه وركړه چې دى دې په كور كې مونځ وكوي كله چې هغه روان شو بيا يې را وغوښت ورته يې وويل : (په كور كې) اذان آورې؟ هغه صحابي ورته وويل هو بيا** رسول الله **ورته وويل :نو بيا ځواب وركوه (مانځه ته ورته راځه) يعني چې د اذان آواز درسيږي زه درته رخصت نشم دركولى .**

[1] رواه مسلم.

## د جومات د خدمت فضيلت

د جومات د صفايي په اړه الله فرمايي :

وَإِذْ بَوَّأْنَا لِإِبْرَاهِيمَ مَكَانَ الْبَيْتِ أَن لَّا تُشْرِكْ بِي شَيْئاً وَطَهِّرْ بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْقَائِمِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ [1]

ترجمه : او (ياد کړه ای محمده!) هغه وخت چې ښکاره (معين) کړ مونږ ابراهيم ته ځای د بيت (الله) (او ورته مو وويل) چې مه شريکوه له ما سره هيڅ شی او پاک ساته کور زما (له بتانو او نورو ظاهري پليتيو څخه) د پاره د طواف کوونکو او د پاره د قيام کوونکو (په مکه کې) او رکوع کوونکو او سجده کوونکو (لمونځ کوونکو لپاره) .

په بل ځای کې الله فرمايي :

وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْناً وَاتَّخِذُواْ مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى وَعَهِدْنَا إِلَى إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ. [2]

---

[1] سورة حج آية ٢٦

[2] سورة البقرة آية ١٢٥

ترجمه : او (یاد کړه ای محمده!) هغه وخت چې وګرځوله مونږ کعبه ځای د ثواب (او اجتماع) خلقو ته او ځای د امن او ونیسئ (ای مؤمنانو!) له ځای د (درېدلود) ابراهیم ځینې ځای د مانځه (طواف او دعاء) او حکم کړی وو مونږ ابراهیم ته او اسمعیل ته چې پاک کړئ (او پاک وساتئ! تاسې دواړه) کور (د عبادت) زما لپاره د طواف کوونکو او اعتکاف کوونکو (یا د مسافرانو او مقیمانو) او (له پاره د) رکوع کوونکو سجده کوونکو (مونځ کوونکو) .

په پورتنیو دواړو آیتونو کې الله فرمايي چې مونږ ابراهیم علیه السلام ته او په بل آیت کې ورسره اسمعیل علیه السلام ته هم امر کړی وو چې د مونځ کوونکو لپاره زما (د عبادت) کور پاک کړئ او پاک وساتئ دا پاکي هم باطني پاکي ده یعني د هر ډول شرک او بت پرستي او بت ساتنې څخه او هم ظاهري پاکي ده یعني د ګندګیو څخه او له هر ډول نا مناسب شي څخه .

عن أبي هريرة رضي الله عنه أن امرأة سوداء كانت تقم المسجد ، ففقدها رسول الله صلى الله عليه وسلم فسأل عنها بعد

أيام فقيل له إنها ماتت قال فهلا آذنتموني ، فأتى قبرها فصلى عليها .[1]

د حضرت ابي هريره روايت دى چې يوه توره ښځه وه د جومات ساتنه به يې کوله (د جومات نه به يې تونې او نور شيان لرې کول صفايي به يې کوله) يو څو شپې نه ښکاريده رسول الله يې پوښتنه وکوله چا ورته وويل چې هغه خو وفات شوه رسول الله وويل : تاسې بيا ماته ولې نه ويل (د هغې جنازې ته به مو خبر کړى وم) بيا يې قبر مبارک ته راغلو او مونځ يې وربانډې وکولو.

عن ابن عباس رضي الله عنهما أن امرأة كانت تلقط القذى من المسجد فتوفيت فلم يؤذن النبي صلى الله عليه وسلم بدفنها ، فقال النبي صلى الله عليه وسلم إذا مات لكم ميت فآذنوني ، وصلى عليها ، وقال إني رأيتها في الجنة تلقط القذى في المسجد .[2]

---

[1] بخاري و مسلم
[2] رواه ا لطبراني

ترجمه : د حضرت عبد الله ابن عباس نه روايت دی چې يوه مېرمن وه د جومات نه به يې شيان لرې كول (د جومات صفايي به يې كوله) هغه وفات شوه رسول الله ته چا د هغې د دفن په اړه نه وو ويلي بيا رسول الله وويل چې په تاسې كې څوک وفات كيږي ما ورباندې خبروئ بيا راغلو او د هغې مباركې په قبر باندې يې مونځ وكولو بيا يې وويل : ما هغه وليده چې په جنت كې يې هم د جومات صفايي كوله .

عن أبي سعيد الخدري رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من أخرج أذى من المسجد بنى الله له بيتا في الجنة .[1]

ترجمه : د حضرت ابي سعيد الخدري نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل : چا چې له جومات نه څه ګندګي (خځله ، ټوټه ، لرګی يا بل شی) وويستل الله به په جنت كې كور ورته جوړ كړي .

حضرت عائشه فرمايي :

[1] اخرجه ابن خزيمة

أمر رسول الله صلى الله عليه وسلم ببناء المساجد في الدُّور وأن تنظف وتطيب.[1]

ترجمه : رسول الله امر کړی دی په جوړولو د جومات په کورونو کې او دا چې هغه پاک کړل شي او ښه بوی پکې وکول شي .

رسول الله د جومات د صفايي په اړه زيات تاکيد کړی دی او هر مسلمان ته يې تشويق ورکړی دی چې هغه د جومات د صفايي ساتنه وکوي په يو ځای کې رسول الله فرمايي :

عرضت علي أجور أمتي حتى القذاة يخرجها الرجل من المسجد .[2]

ترجمه : ما ته زما د امت اجرونه را ښکاره کړل شول حتى چې څوک له جومات نه کوم شی د جومات د صفايي په موخه لرې کوي (هغه هم را ښکاره کړل شو) .

عن ابي قرصافه رضي الله عنه انه سمع الرسول عليه الصلاة والسلام ابْنُوا الْمَسَاجِدَ وَأَخْرِجُوا الْقُمَامَةَ مِنْهَا ، فَمَنْ

---

[1] صحيح الترمذي
[2] صحيح الترمذي و ابو داود

بَنَى لِلَّهِ بَيْتًا بَنَى اللَّهُ لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ . قِيلَ : يَا رَسُولَ اللَّهِ وَهَذِهِ الْمَسَاجِدُ الَّتِي تُبْنَى فِي الطَّرِيقِ ؟ قَالَ : نَعَمْ ، وَإِخْرَاجُ الْقُمَامَةِ مِنْهَا مُهُورُ الْحُورِ الْعِينِ .[1]

ترجمه : د حضرت ابي قرصافة نه روايت دى چې ده د رسول الله نه واورېدل هغه فرمايل : جوماتونه جوړ كړئ او قمامة (هغه خاورې چې د كوم ځاى د جارو كولو څخه را ټولې شي) ترېنه وباسئ چا چې د الله لپاره يو كور (جومات) جوړ كړو الله به ورته په جنت كې كور جوړ كړي د رسول الله نه پوښتنه وشوه چې دا د لارو جوماتونه؟ ( ددې جوړول هم دومره ثواب لري چې څوك يې جوړ كړي الله به ورته په جنت كې كور جوړوي؟) رسول الله ورته وويل : هو او د هغې نه د قمامة (هغه خاورې چې د كوم ځاى د جارو كولو څخه را ټولې شي) وېستل د جنت د حورو مهر دى .

د جومات په پاكي باندې رسول الله امر كړى دى يو حديث دى :

وعن سمرة بن جندب قال: «أَمَرَنَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ نَتَّخِذَ الْمَسَاجِدَ فِي دِيَارِنَا وَأَمَرَنَا أَنْ نُنَظِّفَهَا.[1]

---

[1] صححه الضياء المقدسيّ فِي المختارة

ترجمه : د حضرت سمرة بن جندب  څخه روايت دی هغه فرمايي : رسول الله  مونږ ته امر وکولو چې په خپلو کورونو کې جوماتونه جوړ کړو او امر يې راته وکولو چې هغه پاک وساتو .

[1] صحيح الترغيب و الترهيب

# په جومات کې عطر لګول

د موضوع تر مخه مو ذهن ته دا خبره ور اچول غواړم چې الله رسول الله په مکملو نېکو صفاتو باندې موصوف پيدا کړی وو او د رسول الله به هر پاک او ښه شی خوښېدل ښه او پاک خوراک، ښه او پاک لباس، ښه او پاک اخلاق ، همدارنګه ښه او پاک بوی او په خاصه توګه ښه بوی په هغه شيانو کې دی چې رسول الله ورسره زياته مينه کوله رسول الله په يو حديث کې پدې باندې تصريح هم کړېده رسول الله فرمايي :

حُبب إلي من الدنيا, النساء والطيب, وجُعلت قُرة عيني في الصلاة .[1]

ترجمه : ما ته له دنيا څخه مېرمنې او ښه بوی را محبوب کړل شوي دي او زما د سترګو يخ والی (زما خوشحالي) په مانځه کې کېښودل شوی دی .

او الله د رسول الله په بدن مبارک کې په قدرتي ډول باندې خپله هم يو ښه بوی ايښی وو د هغه

[1] رواه أحمد وصححه الألباني

صلى الله عليه وسلم بدن بغير د عطرو څخه ښه بوی
کولو حضرت انس ابن مالک پدې اړه فرمایي :

ما شممت عنبرا قط ولا مسکا ولا شیئا أطیب من ریح الرسول صلى الله علیه وسلم [1].

ترجمه : ما کله نه دي بوی کړي عنبر او نه مسک
او نه بل ښه بوی چې د رسول الله د (بدن د)
بوی نه یې ښه بوی وي .

حتی چې رسول الله به خپل لاس مبارک د کوم
ماشوم په سر باندې را کش کړو نو د هغه ماشوم
د سر نه به ښه بوی پورته کېدو او چې کله به
ماشوم کور ته لاړو نو د کور خلک به پوهېدل چې
د ماشوم په سر باندې رسول الله لاس را کش کړی
دی خو ددې معجزوي ښه بوی سره سره رسول الله
عطر لګول ډېر زیات خوښول او داسې عطر به یې
لګولي وو چې کله به یو ځای ته راغلو نو د ښه
بوی له امله به خلک پوهېدل چې رسول الله را
ورسېدو او چېرته به چې تېر شو خلک پوهېدل چې
رسول الله تېر شو او د بد بوی نه یې نفرت
کولو او د همدې نفرت له امله یې ډېر بد بوی

[1] **رواه مسلم**

لرونکي حلال شيان نه خوړل لکه پياز اوږه او داسې نور نو د رسول الله سره مينه لرونکی امتي هم بايد عطر او ښه بويونه خوښ کړي په خاصه توګه په هغه ځايونو کې چې چېرته د الله د عبادت لپاره خلق را ټوليږي هلته بايد ښه بوی وي چې هرڅوک هلته په خوشحالۍ سره کيني نو ځکه په جوماتونو کې عطر لګول او يا بل داسې شی استعمالول چې ښه بوی ولري سنت دي مخکې د حضرت عائشې يو حديث تېر شو هغې مبارکې فرمايل:

امَرَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بِبِنَاءِ الْمَسَاجِدِ فِي الدُّورِ وَأَنْ تُنَظَّفَ وَتُطَيَّبَ .[1]

ترجمه : رسول الله امر کړی دی په کورنو کې د جوماتونو په جوړولو د هغې د پاکولو او په هغې کې د ښه بوی په کولو .

او ښه بوی د کوم ځای د احترام او عزت نښه ده ځومره چې په يو ځای کې ښه بوی وي دومره د هغه ځای کتونکو ته هغه ځای معزز او د قدر وړ ښکاره کيږي نو تر جوماتونو به غوره ځای په دنيا کې بل کوم ځای وي او له بله پلوه دا عطر او ښه بوی د انسان لپاره هم زينت او ښائست دی الله مونږ ته امر کړی دی چې جوماتونو ته د تلو په

---

[1] ابو داوود

وخت کې بايد د خپل زينت سره او په ښه هيئت کې لاړشو ا لله فرمايي :

يَا بَنِي آَدَمَ خُذُوا زِينَتَكُمْ عِنْدَ كُلِّ مَسْجِدٍ [1]

ترجمه : اى د ادم زامنو! واخلئ تاسې زينت (ښائست) خپل په نزد (د وخت) د هر مانځه .

همدارنګه حضرت عمر به د هرې جُمعې په ورځ د رسول الله په جومات کې عطر لګول او په هغه کې به يې داسې څه شى استعمالول چې په ټول جومات کې به ښه بوى پورته کېدو .

حضرت عبد الله ابن الزبير به هره ورځ په بيت الله کې عطر لګول او د جُمعې په ورځ به يې يو څه پکې زيات لګول .

په همدې ډول حضرت معاويه به د هر مانځه لپاره په بيت الله کې عطر لګول او حضرت عائشې به فرمايل : لأن أطيب الكعبة أحب إلي من أن أُهدي لها ذهبا وفضة .

زه چې کعبه ښه بويه کړم (داسې څه ورباندې ولګوم چې هغه ښه بوى وکوي) دا ماته ددينه

---

[1] سورة الاعراف آية ٣١

غوره ده چې زه سره او سپین زر ورته هدیه کړم .

کله به چې حضرت عمر په منبر باندې کېناستو نو حضرت عبدالله ابن عمر به په جومات کې داسې څه استعمال کړل چې ښه بوی به ترې پورته شو نو ددې ځای نه علماء کرام فرمايي چې په جومات کې ښه عطر لګول او داسې بل شی سوزول یا شیندل چې په جومات کې يې داسې بوی پورته شي چې د هرچا پر طبیعت ښه لګیږي سنت دي او خلکو ته هم مستحب دي چې کله دوی جومات ته ځي په خپلو ځانونو باندې داسې عطر ولګوي چې په څنګ کې ورسره څوک ودریږي په هغه باندې دده بوی ښه ولګیږي پدې سره په عبادت کې دلچسپي زیاتیږي او د خلکو هم په مینځ کې یو له بل سره مینه او محبت زیاتیږي .

او صحابه وو چې چا وس درلود همداسې يې کول د مثال په توګه :

حضرت سلمة به چې کله اودس وکولو نو بیا به يې مسک را واخستل په مخ او لاسونو به يې پورې کړل .

حضرت عبد الله ابن مسعود به چې کله جومات ته راتللو نو په ښه بوی به پېژندل کېدو .

حضرت عبد الله ابن عباس به چې کله جومات ته روان وو بغیر ددېنه چې دی چا لیدلی وی دده په بوی سره خلک پوهېدل چې دی مبارک تېر شو او جومات ته لاړو او یا له جومات نه کور ته لاړو .

د حضرت عبد الله ابن عمر په اړه فرمایي :
یتطیب للجمعة والعیدین کان یأمر بثیابه أن تجمر کل جمعة

یعني د هرې جمعې او اختر لپاره به یې عطر لګول او د جامو په اړه به یې امر کولو چې هره جُمعه دې د ښه بوی لرونکي شي لوګی پرې وشي.

## د جومات حقونه

هر جومات په مسلمانانو باندې حقونه لري هغه کسان چې جومات ته ورځي او هلته کيني پاځيږي بايد د جومات د حقونو ساتنه وکوي لکه مخکې چې بيا بيا تېر شول جومات د الله د عبادت ځای دی د ډېر احترام لپاره ورته د الله کور ويل کيږي او الله په قرآن کريم کې هم د جومات نسبت خپل ځان ته کړی الله فرمايي :

وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلَا تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا [1]

ترجمه : بېشکه جوماتونه د پاره (د ياد) د الله دي مه بولئ تاسې (په دغو جوماتونو کې ) سره له الله بل څوک .

نو ددې امله يې بايد هر مؤمن هم احترام وکوي او حقونه يې ور په ځای او ادبونه يې مراعات کړي .

[1] سورة جن آية ١٨

## لمړی حق : د پاکي ساتنه یې کول

مخکې پدې اړه متعدد حدیثونه تېر شول چې مونږ ته یې دې لوري ته تشویق راکولو چې باید د جومات صفایي وکوو نو دا صفایي د جومات حق دی باید ټول هغه کسان یې ساتنه وکوي چې کوم جومات ته ورځي او مونځ پکې کوي او دا پاکي ساتل له هرډول باطني ګندګي نه لکه شرک، بد الفاظ پکې استعمالول ، بد نظر پکې کول او داسې نور او همدارنګه د ظاهري ګندګي نه که هلته پکې خاورې وي یا بل ګنده شی پکې پروت وي لرګی وي، خځله وي ، پلاستیک یا بل شی وي هغه به ترې لرې کیږي او همدارنګه له هر ډول بد شي څخه جومات پاک ساتل د جومات حق دی په یو حدیث کې رسول ﷲ فرمایي :

إن هذه المساجد لا تصلح لشيء من هذا البول والقذر إنما هي لذكر ﷲ وقراءة القرآن.

ترجمه : (نوي مسلمان شوي کسان به چې اکثر د غرونو اوسیدونکي خلک وو نو ځینې به چې نوي ابادي ته راغلل وو نو د ابادې په دود او دستور به نه وو بلد رسول ﷲ هغوی ته فرمایي

) دا جوماتونه د داسې بولو کولو یا ګندګي لپاره نه دي دا د الله د ذکر او د قرآن کریم د تلاوت لپاره دي .

په بل حدیث کې رسول الله فرمایي :

من أكل ثوما أو بصلا فلا يقربن مسجدنا هذا فإن الملائكة تتأذى مما يتأذى منه بنو آدم

ترجمه : چا چې اوږه وخوړه (چې د خولې نه یې بیا بد بوی ځي) یا یې (خام) پیاز وخوړلو نو هغه دې زمونږ دې جومات ته نه راځي ځکه ملائکې هم د هغه شي نه په تنګ کیږي له کوم شي نه چې انسان په تنګ کیږي .

یعني هغه کسان چې د خولې نه یې د څه خوراک له امله بد بوی ځي هغوی د جومات ته نه راځي ځکه د هغوی د بد بوی نه ملائکې په تنګ کیږي .

# دوهم حق: په جومات کې خبرې نه کول

دا هم د جومات حق دی چې هلته باید انسان یا د الله په ذکر مصروف شي او یا په کومه دیني موضوع باندې خبرې وکوي او یا دیني درس وکوي او یا د الله ذکر ، مونځ او تلاوت وکوي او هلته انسان باید دنیایي خبرې ونه کوي رسول الله په جومات کې د دنیایي خبرو په اړه فرمایي :

الكلام في المساجد يأكل الحسنات كما تأكل النار الحطب

ترجمه : په جومات کې (دنیایي) خبرې کول نیکیانې داسې خوري لکه اور چې لرګي خوري .

نو چې په جومات کې په خبرو کولو سره زمونږ نیکي ختمیږي نو بیا مونږ څه لېونیان یو چې خبرې به کوو؟ او هسې هم چې د انسان نکیانې کمې وي او بیا ترې نورې هم کمې شي نو دا د کم بختي نښه ده .

حضرت سعید ابن مسیب فرمایي :

من جلس في المسجد فإنما يجالس ربه، فحقه أن لا يقول إلا خير

ترجمه : څوک چې په جومات کې ناست وي بېشکه دی له خپل رب سره ناست دی دی باید صرف د خیر (دیني) خبرې وکوي .

## دریم حق : په جومات کې د ورک شي لټون نه کول

په اوس وخت کې رواج شوی دی چې کوم شی ورک شي نو خلک په جومات کې د هغه شي اعلان کوي دا د جومات یو ډول بې ادبي ده رسول الله ﷺ په جومات کې د ورک شوي شي اعلان کولو نه منع فرمایلې ده رسول الله ﷺ فرمایي :

من سمع رجلا ينشد ضالة في المسجد فقولوا له لا ردها الله عليك فإن المساجد لم تبن لهذا

ترجمه : چا چې واورېدل چې یو کس په جومات کې د ورک شوي شي اعلان کولو تاسې ورته ووایاست چې الله دې نه در پیدا کوي جومات ددې لپاره نه دی جوړ شوی .

په همدې ډول په جومات کې هر ډول اخستل او خرڅول ، د تجارت خبرې کول او داسې نور کارونه چې دنیاوي اړخ ولري دا د جومات بې عزتي ده .

د حضرت عبد الله ابن عمر څخه روایت دی هغه فرمايي :

نهى رسول الله صلى الله عليه وسلم عن الشراء والبيع في المسجد وأن تنشد فيه الأشعار، وأن تنشد فيه الضالة .[1]

ترجمه : رسول الله منع کړې له اخستلو او خرڅولو په جومات کې او لدې نه يې هم منع کړې چې په جومات کې اشعار ولوستل شي او يا پکې د ورک شوي اعلان وشي .

د حضرت ابي هريره څخه روایت دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل : إذا رأيتم من يبيع أو يبتاع في المسجد فقولوا: لا أربح الله

[1] رواه البخاري و مسلم

تجارتك، وإذا رأيتم من ينشد فيه ضالة فقولوا لا ردّ الله عليك.[1]

ترجمه : چې تاسې څوک وليدل چې په جومات کې يې يو شی اخستل او يا يې خرڅول تاسې ورته ووايــاست الله دې ستا پدې تجارت کې تاته ګټه نه درکوي او څوک مو چې وليدل په جومات کې يې د ورک شوي سامان اعلان کولو نو ورته ووياست چې الله يې د نه در پيدا کوي .

## څلورم حق : د جومات سره مينه کول

په هر مسلمان باندې د جومات حق دی چې په زړه کې به د هغه سره مينه لري او په زړه کې به جومات تر خپل کور او خپلې ابادي نه زيات ورته ګران وي او څومره چې د خپل کور ساتنه کوي او د هغه د هرشي غم ورسره وي داسې به د جومات هم فکر کوي او د هرشي په اړه به يې ځان خبروي او که کوم شي ته يا کوم ترميم ته يې ضرورت وي بايد په مينه سره انسان داسې ورته تيار شي لکه د خپل کور په اړه يې چې کوم شي په کار وي دی ورته تياريږي .

---

[1] رواه الترمذي

# پنځم حق : د عزت په نظر ورته کتل

جومات که لوی وي او که وړوکی د الله په وړاندې قدر من دی لکه مخکې چې حدیثونه تېر شول رسول الله فرمایل که جومات دومره وړوکی وي لکه د قطاة مارغه د هګۍ د اچولو ځای بیا هم چې چا دا جومات جوړ کړی وي الله به ددې په بدل او عوض کې په جنت کې ورته کور جوړوي نو چې الله ته دومره ګران دی نو په انسان یې هم حق دی چې ورته په درنده سترګه او د عزت په نظر ورته وګوري داسې څه عمل پکې ونه کوي چې د جومات د عزت خلاف وي او نه داسې څه شی پکې کیږدي چې په هغه کې د جومات بې عزتي وي او په هر ځل ننوتلو کې به انسان داسې فکر کوي چې دا د الله کور او د عزت نه ډک ځای دی.

الله په قران کریم کې د جومات او د نورو اسلامي شعائرو تعظیم او احترام ته تقوی ویلې ده الله فرمایي :

وَمَن يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللَّهِ فَإِنَّهَا مِن تَقْوَى الْقُلُوبِ . [1]

[1] سورة حج آية ٣٢

ترجمه : او هرچا چې تعظیم وکړ د علائمو د (دین د) الله بېشکه دا (تعظیم) له (افعالو د خاوندانو د) تقوی د زړونو دی .

یعني د چا په زړه کې چې د پرهیزګاري مضمون او له الله څخه وېره وي نو دی به د شعائر الله تعظیم کوي او هغې ته به په درنده سترګه ګوري ، عزت به یې کوي ، قدر به یې کوي .

## شپږم حق : خدمت یې کول

د جومات په هر مسلمان باندې حق دی چې څومره دده وس وي د هغه خدمت وکوي چې هرشي ته دجومات ضرورت وي که صفایي وي ، که څه ترمیم وي او که بل کار وي مسلمان به ترینه ځان نه غړوي او د جومات حق به ور پوره کوي دا فکر به نه کوي چې څه بل څوک به یې وکوي ، زه نه یم ورته خلاص ، زما کار نه دی ... بلکه دا په هر چا باندې بېل بېل حق دی انسان باید داسې ځان ورته خلاص کړي لکه خپل کوم کار ته چې ځان خلاصوي.

د حضرت انس ابن مالک نه روایت دی چې رسول الله فرمایل :

من أسرج في مسجد سراجاً لم تزل الملائكة وحملة العرش يصلون عليه

ويستغفرون له ما دام ذلك الضوء فيه وإن كنس غبار المسجد نقد الحور العين.[1]

ترجمه : چا چې په جومات کې چراغ بل کړو ملائکې او د عرش باروونکې (خاصې ملائکې) وربانديې رحمت ليږي او دده لپاره دده د ګناهونو بښنه غواړي ترڅو چې په هغه چراغ کې رڼا وي او د جومات د ګرد جارو کول د حورو مهر دی .

حضرت تميم الداري له شام نه په يوه قافله کې مديني منورې ته رسی ګاني ، چراغونه او تېل راوړل کله چې مديني منورې ته را ورسېدو نو د جُمعې شپه وه خپل غلام ته يې امر وکولو رسی يې را واخيستي چراغونه يې په جومات کې وځړول تېل يې پکې واچول او چې کله لمر وغورځېدو نو غلام ته يې امر وکولو هغه يې ټول ولګول کله چې رسول الله را ووتلو هغه ټول پړقېدل (ځلېدل) رسول الله پوښتنه وکوله دا چا کړي دي؟ چا ورته وويل دا حضرت تميم الداري کړي دي رسول الله دده لوري ته مخ ور واړولو ورته يې وفرمايل : يا تميم نورت الإسلام نور الله

---

[1] رواه الحارث بن أبي أسامة

عليك في الدنيا والآخرة، أما لو كانت لي ابنة لزوجتكها

ترجمه : ای تمیمه تا اسلام رښا کړو الله د په تا باندې په دنیا او آخرت کې رښایي نازله کړي او که مې اوس کومه لور وای (چې واده شوې نه وای) نو درکوله مې .

## اوم حق : په هر حالت کې ورتلل

جومات که د چا د کور نه لرې وي او که نېږدې وي انسان به د ورتلو کو ښښ کوي که لاره سخته وي که اسانه، که تیاره وي که رڼا، که یخني وي که ګرمي او ځومره چې د سختي په حالت کې انسان لاړ شي الله ورته همدومره ثواب ورکوي مخکې احادیث تېر شول چې کله مسلمان جومات ته د مانځه په نیت روان وي الله ورته د قدم قدم په بدل کې یوه ګناه ختموي یوه مرتبه ورته پورته کوي .

د حضرت ابي موسى الاشعري نه روایت دی هغه فرمایي رسول الله فرمایل :

إن أعظم الناس أجرا في الصلاة أبعدهم إليها ممشى فأبعدهم، والذي ينتظر

الصلاة حتى يصليها مع الإمام أعظم أجرا من الذي يصليها ثم ينام [1].

ترجمه : په مانځه کې تر ټولو خلکو نه د هغه کس اجر زيات وي چې له لري ځای نه ورځي بيا چې تر هغه نه د لرې نه ورځي (بيا د هغه ثواب زيات وي) او هغه کس چې مانځه ته انتظار وکوي او د امام سره (په جمع) مونځ وکوي دا د هغه کس نه غوره وي چې (د انتظار نه بغير) مونځ وکوي او ويده شي .

د حضرت ابي ابن کعب ځخه يو روايت دی :

ترجمه : له انصارو ځخه يو کس وو د هغه کور له جومات نه دومره لرې وو چې د هغه نه لرې کور بيا ماته نه وو معلوم او يو مونځ به هم ورځخه نه پاتې کېدو (هر مانځه ته به را رسېدلو) چا ورته وويل : چې يو خر د اخيستی وای په تياره کې او په ګرمۍ کې به وربانديي جومات ته راتلې؟ ده ورته وويل (زما همدا حالت خوښ دی) او زه پدې نه خوشحاليږم چې کور مې د جومات په خوا کې شي زه غواړم چې الله زما جومات ته راتلل او بيا بېرته کور ته تلل ماته په ثواب کې وليکي

---

[1] متفق عليه

بيا رسول الله ورته وويل الله دا هرڅه تاته جمع کړي دي .[1]

## آتم حق : جومات ته ځان تيارول

کله چې انسان جومات ته تلل غواړي نو د جومات حق دی چې انسان بايد ځان ورته جوړ کړي (څومره چې ورته اسانه وي) لکه مخکې چې تېر شول که ممکنه وي چې هر وخت پاکې جامې واخوندي او عطر ووهي نو ډېره غوره ده او که دا نه وي ممکنه چې هسې ښه اودس وکوي او په ښه نيت ور روان شي دا په مسلمان باندې د جومات حق دی .

[1] رواه مسلم

## نهم حق: دنیاوي کارونه ورته ختمول

د جومات دا حق دی چې هلته به انسان صرف د الله د عبادت لپاره ورځي او ددې لپاره چې هلته په عبادت کې څه مشکل را مخې ته نشي نو باید انسان جومات ته تر تلو وړاندې خپل دنیاوي کارونه د دومره وخت لپاره چې دی پکې مونځ کولی شي داسې ودروي چې په جومات کې ورته د دنیاوي کار کولو او یا بېرته د مانځه د پوره کېدلو وړاندې د را وتلو ضرورت نشي د همدې قبیلې څخه د اوسنیو موبایلونو موضو ع هم ده په کار ده چې انسان یې جومات ته تر تلو وړاندې بند کړي ترڅو په جومات کې د ننه او په خاصه توګه په مانځه کې ورته زنګ راتلل دده او د نورو مونځ کونکو د خشوع او توجه مخل نه شي او موبایل بندول هم یو ډول د دنیاوي تعلقاتو سره پرېکړه کول دي .

## لسم حق تر کېناستلو مخکې دوه رکعته مونځ کول

کله چې انسان جومات ته ننوزي او دا داسې وخت نه وي چې په هغې کې مونځ کول مکروه وي او یا داسې وخت نه وي چې امام په خطبه کې وي او یاد

بلې کومې وجې له امله د مانځه کولو مانع نه وي نو د جومات حق دی چې مسلمان به تر هغه وخته پورې نه کيني ترڅو يې دوه رکعته مونځ کړی نه وي او که انسان پداسې وخت کې جومات ته ننوزي چې د جمع وخت وي او تر کېناستلو وړاندې په جمع باندې ودريږي بيا دا حق ورڅخه ساقط دی .. او دې دوو رکعتونو ته د جومات تحفه ويل کيږي ددې دوو رکعتونو په اړه د رسول الله يو حديث دی حضرت قتادة فرمايي رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايل : إذا دخل أحكم المسجد فلا يجلس حتى يصلي ركعتين .[1]

ترجمه : کله چې په تاسې کې يو کس جومات ته ننوزي نو تر هغه وخته پورې د نه کيني ترڅو يې دوه رکعته مونځ نه وي کړی .

## يولسم حق له اذان وروسته تر مانځه وړاندې نه وتل .

کله چې انسان په جومات کې وي اذان وشي او يا تر اذان وروسته جومات ته لاړ شي ترڅو چې هلته مونځ نه وي شوی نو له جومات نه به نه ځي دا مکروه دي او هغه کس چې په بل ځای کې جمع

[1] متفق عليه

ورکول دده ذمه واري وي نو هغه کس که لاړ شي خير دی پدې اړه حضرت ابي الشعثاء فرمايي :

كنا قعودا عند أبي هريرة رضي الله عنه في المسجد فأذّن المؤذن فقام رجل من المسجد يمشي فأتبعه أبو هريرة بصره حتى خرج من المسجد، فقال أبو هريرة: أما هذا فقد عصى أبا القاسم صلى الله عليه وسلم. [1]

ترجمه : مونږ په جومات کې د ابي هريره سره ناست وو مؤذن اذان وکولو د هغې نه وروسته يو کس له جومات څخه پاڅېدو روان شو حضرت ابي هريره پسې خپلې سترګې نيولې وې ترڅو هغه د جومات څخه ووتلو نو حضرت ابي هريره وويل : دې کس د ابي القاسم (رسول الله ) مخالفت وکولو .

## دولسم حق : جومات ته صرف د عبادت لپاره ننوتل

[1] رواه مسلم

لکه مخکې چې تېر شول جومات د الله د عبادت مقدس او پاک ځای دی هلته چې څوک هم ور ننوتل غواړي نو د عبادت په نیت به ورځي ترڅو چې سخت ضرورت نه وي نو د جومات نه د تېرېدلو د لارې کار نه اخلي او نه به په جومات کې خوراک ، ارام او استراحت کوي دې شیانو ته ترڅو چې سخت ضرورت نه وي جومات به ورڅخه ساتي .

## دیارلسم حق : له بې ادبه ماشومانو څخه ساتل

هغه ماشوم چې د جومات له آدابو سره بلد نه وي په جومات کې په زوره خبرې کوي ، چیغې وهي ، خاندي ، ژاړي په جومات کې داسې کارونه کوي چې په مانځه کې د خلکو توجه ورسره خرابیږي لداسې ماشومانو څخه به جومات ساتي او هغه ماشومان چې هغه ادب ناک وي په جومات کې داسې څه نه کوي چې د جومات د ادبونو خلاف وي نو که له مشر سره جومات ته لاړ شي نو ښه خبره ده .

## څوارلسم حق ښځې به جومات ته د تلو لپاره عطر نه لګوي .

هغه ښځې چې په مانځه کې شریکیږي هغوی به نه عطر لګوي او نه به د ښائست داسې شیان له ځان

سره وړي چې هغه په ښکته کېدلو او پورته کېدلو کې اواز کوي چې پدې سره د نورو مونځ کونکو توجه او خشوع خرابیږي حضرت عائشه فرمايي رسول ﷲ مونږ ته فرمايل : إذا شهدت إحداكنّ المسجد فلا تمسّ طيّبا . [1]

ترجمه : په تاسې کې چې څوک جومات ته ځي نو هغه د عطر نه لګوي

ځکه له ښځې نه چې ښه بوی پورته کیږي دا اجنبي سړی په فتنه کې اچوي رسول ﷲ د هغه ښځې په اړه فرمايلي دي چې د عطرو بوی يې په کوم اجنبي سړي باندې ولګیږي چې دا ښځه داسې داسې (يعني زانيه ده) .

حضرت عائشه فرمايي :

بينما رسول ﷲ صلى ﷲ عليه وسلم جالس في المسجد إذ دخلت إمرأة مزينة ترفل في زينة لها في المسجد، فقال صلى ﷲ عليه وسلم: يا أيها الناس انهوا نساءكم عن لبس الزينة والتبختر في المسجد فإن بني إسرائيل لم يلعنوا

---

[1] **رواه مسلم**

حتى لبس نساؤهم الزينة وتبختروا في المساجد [1]

ترجمه : يو وخت چې رسول الله ﷺ په جومات کې ناست وو يوه ښځه چې ځان يې جوړ کړی وو جومات ته را ننوتله رسول الله ﷺ وويل : ای خلکو خپلې ښځې لدې څخه منع کړئ چې دوی په جومات کې د زينت شيان واغوندي (ورته ووايـاست چې جومات ته د زينت په لباس کې نه راځي) ځکه په بني اسرائيلو باندې تر هغه وخته پورې لعنت نه وو شوی ترڅو چې ښځو يې د زينت لباس په جوماتونو کې واغوستلو.

[1] رواه ابن ماجه

# د جومات ادبونه

۱. په ننوتلو کې ښی پښه وړاندې کول

۲. د ننوتلو په وخت کې دا دعاء ویل : بسم الله، اللهم صل علی سیدنا محمد، اللهم افتح لي أبواب رحمتك

له ننوتلو وروسته که هلته د لږ ساعت لپاره هم پاتې کیږي که د اعتکاف نیت وکوي نو دا مستحب ده او هلته پاتې کېدل یې د لا زیات ثواب لامل ګرځي او د اعتکاف نیت به داسې کوي چې ننوزي نو ووایي : ترڅو پورې چې پدې جومات کې زه پاتې کیږم تر هغه وخته پورې مې د اعتکاف نیت دی .

۳. د جومات د صفایي فکر ساتل هسې نه چې په ځان او جامه پورې یې داسې څه شی لاړ شي چې د جومات د ګنده کېدو لامل وګرځي .

٤. له ځان سره داسې شی نه وړل چې په جومات کې یې په خلکو باندې بد بوی ولګیږي د همدې امله رسول الله هم فرمایلي دي چې څوک دا شیان وخوري بیا د زمونږ دې جومات ته نه راځي پدې

اړه يو حديث تېر شو او يو بل حديث دی د حضرت جابر نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل .

من أكل ثوما أو بصلا فليعتزلنا، أو فليعتزل مسجدنا.[1]

ترجمه : چا چې اوږه او يا پياز وخوړلو (پداسې توګه چې د خولې نه يې بوی تلو) نو هغه دې زمونږ نه لرې شي او يا د زمونږ د جومات نه لرې شي .

په مخکې تېر شوي حديث کې رسول الله ورسره وجه هم ويلې وه چې د بد بوی څخه ملائک په تنګ کيږي .

٥. په جومات کې خپل اواز ښکته ساتل

که انسان تلاوت کوي او که بل ذکر کوي بايد په جومات کې يې تر ضرورت زيات اواز پورته نه کړي ځکه هلته به نور عبادت کونکي وي چې د هغوی د توجه او خشوع وربانديې خرابه نشي .

د حضرت السائب بن يزيد الصحابي نه روايت دی هغه فرمايي :

---

[1] **متفق عليه**

كنت في المسجد فحصبني رجل فنظرت فإذا عمر بن الخطاب فقال: اذهب فأتني بهذين، فجئته بهما، فقال: من أين أنتما؟ فقالا: من أهل الطائف فقال: لو كنتما من أهل البلد لأوجعتكما، ترفعان أصواتكما في مسجد رسول الله صلى الله عليه وسلم. [1]

ترجمه : زه په جومات کې وم يو چا تر ځادر ور کش کړم چې ورته مې وکتل حضرت عمر وو راته يې وويل : ورشه هغه دوه کسان ماته راوله هغه مې ورته راوستل ورته يې وويل : د کوم ځای یاست؟ هغوی ورته وویل مونږ د طائف یو بیا یې ورته وويل که تاسې د همدې ځای وئ (مېلمانه او مسافر نه وئ) نو تاسې به مې خوږ کړي وئ (سزا به مې درکړې وه) تاسې د رسول الله په جومات کې اوازونه پورته کوئ.

د حضرت ابي السعيد الخدري نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله په جومات کې اعتکاف کولو وائې وریدل چې په تلاوت کې د خلکو آوازونه پورته کېدل (خلکو په زوره تلاوت کاوه) رسول

[1] رواه البخاري.

ﷺ پرده پورته کړه او ويې فرمايل : ألا كلكم مناج ربه فلا يؤذين بعضكم بعضا ولا يرفع بعضكم على بعض في القراءة.[1]

ترجمه : خبردار تاسې ټول خپل رب ته اواز کوئ ځينې لتاسې څخه دې ځينې نورو ته (په خپل لوړ اواز سره) ضرر ونه رسوي او په تاسې کې دې ځينې خپل د تلاوت اواز په ځينې نورو باندې پورته نه کړي .

٦. له عبثياتو څخه ځان ساتل

د جومات بل ادب دادی چې څوک په جومات کې د مانځه په انتظار ناست وي په عبثياتو باندې به له مصروف کېدلو څخه ځان ساتي ، لکه د ګوتو ټکونه ويستل ګوتې سره يو په بل کې ورکول او داسې نور .. حضرت ابو سعيد الخدري ؓ فرمايي :

دخلت المسجد مع رسول الله صلى الله عليه وسلم فإذا رجل جالس وسط المسجد محتبيا مشبّكا أصابعه بعضها على بعض فأشار إليه رسول الله صلى الله عليه وسلم

[1] رواه النسائي وأبو أحمد.

فلم يفطن لإشارته، فالتفت رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال:{ إذا كان أحدكم في المسجد فلا يشبّكنّ فإنّ التشبيك من الشيطان، وإنّ أحدكم لا يزال في صلاة ما كان في المسجد حتى يخرج منه}[1]

ترجمه : زه د رسول الله سره يو ځاى جومات ته ننوتلم هلته مو وليدل چې يو سړى د جومات په مينځ کې داسې ناست دى چې خپل لاس يې تر خپلو پښو را تاو کړي او خپلې پښې يې پکې را نيولي دي او د لاسونو ګوتې يې په يو بل کې سره ورکړې دي رسول الله هغه ته اشاره وکوله لکن هغه د رسول الله په اشاره باندې پوه نه شو بيا رسول الله وکتل او ويې فرمايل : کله چې يو له ستاسې نه په جومات کې وي نو ګوتې دې يو په بل کې سره نه ورکوي (د ګوتو نه د جال نه جوړوي) ځکه دا د شيطان کار دى او په تاسې کې چې څوک په جومات کې وي ترڅو چې هغه د جومات څخه وتلى نه وي هغه په مانځه کې دى .

٧. په جومات کې له غصې او جګړې نه ځان ساتل

---

[1] رواه أحمد.

بل د جومات له آدابو څخه دادي چې که په جومات کې څوک په تا باندې تېرى هم كوي ته بايد وربانديې صبر وکوې او د جومات د برکت له امله يې معاف کړې او هلته ورسره جګړه جوړه نه کړي ځکه يو بل ته سختې خبرې كول ، آواز پورته كول، شور جوړول ، بحث كول، لانجه كول د جومات بې عزتي ده .

٨. جومات ته په سنګيني سره تلل :

انسان چې کله جومات ته ځي په سنګينۍ سره به ځي او منډې به نه وهي او که په ورو ورو تللو سره دده څخه د جَمع دمانځه کوم رکعت تېر شي هم خير دى رسول الله فرمايي : کله مو چې اقامت واوريدو نو مانځه ته لاړ شئ په سنګينۍ او عزت سره او منډې مه وهئ کوم مونځ مو چې ونيولو نو هغه وکوئ او کوم چې درڅخه پاتې شو هغه بيا پخپله وکوئ .[1]

٩. دمونځ كونكي په مخ كې نه تېريدل :

مسلمان به كوښښ كوي چې د مونځ كونكي په مخكې په هيڅ صورت كې تېر نشي رسول الله فرمايي : كه د مونځ كونكي په مخ كې تېريدونكى پوهېدلى چې په ده باندې څومره ګناه ده نو دى به تر

---

[1] **متفق عليه**

څلويښتو کلونو پورې درېدلی وو خو دهغه په مخ کې به نه وو تېر شوی .[1]

هو کله چې مونځ کونکي په جمعه باندې ولاړ وي صرف د امام په مخکې چې یو شی کېښودل شي بیا انسان د ټولو خلکو په مخ کې تېرېدلی شي او که تنها مونځ کوي نو بیا ترڅو چې دهغه مخې ته څه شی نه وي اېښودل شوي تر مخ ئې تېرېدل منع دي .

۱۰ په ذکر مشغول کېدل

هغه څوک چې په جومات کې ناست وي د هغه لپاره سنت دي او د جومات ادب دی چې هسې بې کار د نه کيني بلکه د الله په ذکر د خپل ځان مصروف کړي که تلاوت وي ، که دعاء وي او که بل هر شی وي .

## د جومات احکام

د رسول الله امت ته الله یوه خبره دا هم له نورو پخوانیو امتونو څخه خاصه ورکړېده چې ټوله زمکه یې د دوی لپاره جومات ګرځولې ده پدې معنی چې په هرځای کې د مانځه وخت وربانديې

[1] رواه مسلم

راشي هماغلته يې كولى شي او په نورو امتونو كې به د دوى مونځ د دوى په خاصو ځايونو كې او عبادتخانو كې كېدو ددې نعمت په اړه د حضرت جابر بن عبد الله نه روايت دى هغه فرمايي رسول الله فرمايل :

أعطيت خمسا لم يعطهن نبي قبلي ، نصرت بالرعب مسيرة شهر ، وجعلت لي الأرض مسجدا وطهورا ، فأيما رجل من أمتي أدركته الصلاة فليصل ، وأحلت لي الغنائم ولم تحل لأحد قبلي ، وأعطيت الشفاعة ، وكان النبي يبعث إلى قومه خاصة ، وبعثت إلى الناس عامة .[1]

ترجمه : ماته پنځه شيان را كړل شوي دي چې لما وړاندې بل نبي ته نه دي وركړل شوي ۱. زما مرسته شوې په رعب باندې په اندازه د يوې مياشتې (له لرې نه مې په خلكو باندې رعب غورځيږي) ۲. زمكه زما لپاره جومات او پاكې ګرځول شوېده زما په امت كې چې په چا باندې هرچېرته د مانځه وخت راشي نو هلته د مونځ وكوي ۳. غنيمتونه خوراك زما لپاره روا شوي دي زما نه مخكې امتونو ته غنيمتونه خوراك نه وو

---

[1] **متفق عليه .**

روا ٤. ماته په قيامت کې د عام شفاعت اجازه راکړل شوېده ٥. مخکې به يو نبي د خاص قوم لپاره لېږل کېدو زه د ټولو خلکو لپاره را لېږل شوی يم .

لکن ددې سره سره چې ددې امت لپاره ټوله زمکه د مانځه ځای دی لکن هغه ځای چې صرف مانځه او عبادت ته خاص کړل شي دهغې په اړه څه احکام دي ستاسې فام ورته را ګرځوم .

⇦ په کومه زمکه باندې چې جومات جوړيږي په هغې کې بايد لاندې شرطونه موجود وي :

الف . په داسې ځای کې وي چې هرڅوک ورته په اساني سره رسېدلی شي د مثال په ډول که د کلې په يو سر کې وې او د کلې د بل سر له خلکو نه ډير لرې وي نو ددې په ځای په داسې ځای باندې جومات جوړول غوره دي چې د کلي په مينځ کې وي .

ب. لاره يې په امن وي داسې ځای نه وي چې هلته هرڅوک په هر وخت کې نشي ورتلی يا د ځناورو خطر وي او يا بل څه خطرناک شی وي .

ج. داسې زمکه وي چې مونځ ورباندې صحيح کيږي غصب شوې نه وي ، له چا څخه په زور نه وي نېول شوې.

د. جومات به د چا ملک نه ګڼل کیږي او چا ته به اختیار نه وي چې څوک تري منع کړي د ټولو مسلمانانو شریک دی او هرڅوک چې وغواړي جومات ته به د ذکر ، دعا ، مانځه او عبادت لپاره ورتلی شي .

# په پلازه (لوی تعمیر) کې د جومات جوړولو حکم

⇦ په داسې لوی تعمیر کې د جومات د جوړولو په اړه چې تر جومات لاندې هم کورونه او نور د هستوګنې ځایونه راځي او لپاسه پرې هم راځي امام ابي یوسف فرمایي چې هېڅ پروا یې نشته روا دی که د جومات لپاسه په بل منزل کې او یا ترې لاندې په بل منزل کې ابادي وي نو خیر دی .[1]

⇦ دلیل یې دادی چې امام ابو یوسف فرمایي ځکه په لوی تعمیر کې چې ډېر منزلونه ولري او په هر منزل کې مختلفې شُقې (پلیټونه/ واړه واړه کورونه) وي نو دا هر یو کور (هره شُقه /پلېټ) بېل بېل خرڅېدلی شي ، په کرایه ورکول کېدلی شي او چاته په تصرف کې ورکول کېدلی شي او پدې معاملاتو کې لاندې ا و پورته لوري ته هېڅ نظر نه کیږي نو اوس دا هم کېدلی شي چې یو څوک دې د دوو کورونو په مینځ کې یو کور د مثال په توګه په دوهم منزل کې د څوک

[1] شرح فتح القدیر لابن الهمام

ځای وقف کړي جومات ته او په اول منزل او دوهم منزل کې د خلک ژوند وکوي .[1]

⇦ امام ابي حنيفه فرمايي که په جومات لپاسه ابادي وي نو خير دی تر جومات لاندې به ابادي نه وي .[2]

⇦ دليل يې دادی چې کله جومات په زمکه باندې وي نو جومات به معلوم او محکم وي او که چېرته د څه مشکل له مخې دا تعمير ړنګيږي نو بيا هم په هر صورت د جومات ځای تعين دی په زمکه باندې د جومات ځای دی او دا نه ورکيږي .[3]

## په لاره کې د جومات د جوړولو حکم

کله چې په لاره کې جومات جوړيږي نو په داسې ځای کې به جوړيږي چې هلته يې چاته ضرر نه وي ، د چا لاره ورسره نه تنګيږي ، چاته پکې څه مشکل نه وي او پداسې ځای کې چې د جومات له امله د تېرېدونکو لپاره لاره تنګيږي نو په لاره کې به جومات نه جوړوي د حضرت ابي سعيد الخدري نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله مونږ ته فرمايل :

---

[1] حاشيه ا بن عابدين (رد المحتار)

[2] رد المحتار

[3] شرح فتح القدير لابن الهمام

اياكم والجلوس بالطرقات . قالوا : يا رسول الله : ما لنا بد من مجالسنا نتحدث فيها . قال رسول الله – صلى الله عليه وسلم – : " إذا أبيتم إلا المجلس فأعطوا الطريق حقه " . قالوا : وما حقه ؟ قال : " غض البصر ، وكف الأذى ، ورد السلام ، والأمر بالمعروف ، والنهي عن المنكر . [1]

ترجمه : تاسې په لارو کې له کېناستلو نه ځان وساتئ دوی ورته وویل یا رسول الله زمونږ د هغه ځایو نو د کېناستلو نه بغیر نه کیږي هلته مونږ کینو خبرې پکې کوو رسول الله ورته وویل چې تاسې خامخا کینئ نو بیا به لارې ته د هغې حق ورکوئ دوی پوښتنه وکوله چې د لارې حق څه شی دی؟

رسول الله ورته وفرمایل : سترګې ښکته کول ، ضررناک شی له لارې لرې کول، د سلام ځواب ورکول ، په نېکو باندې امر کول، له بدو څخه منع کول .

---

[1] **رواه مسلم**

⇦ په پورتني حديث کې رسول الله پـه لاره کې د کېناستلو نه منع وکوله ترڅو په لاره باندې د تېريدونکو خلکو لپاره هلته تېرېدل مشکل نه شي ، هغوى ته په لاره کې تکليف ونه رسيږي نو چې صرف د انسانانو د کېناستلو نه ددې امله منع کيږي نو چې هلته ا بادي کيږي نو خامخا به ترې منع کيږي .

⇦ او که په لاره کې داسې ځاى وي چې هلته د جومات جوړيدل هېڅا ته د مشکل پيدا کېدو لامل نه ګرځېږي او په لاره د تېريدونکو خلکو په لاره کې مخل نه واقع کيږي نو بيا يې د جومات د جوړولو هېڅ ممانعت نشته .

حضرت عائشه فرمايي :

لم أعقل أبوي إلا وهما يدينان الدين ، ولم يمر علينا يوم إلا يأتينا فيه رسول الله – صلى الله عليه وسلم – طرفي النهار بكرة وعشية ، ثم بدا لأبي بكر فابتنى مسجدا بفناء داره فكان يصلي فيه ويقرأ القرآن ، فيقف عليه نساء المشركين وأبناؤهم يعجبون منه ، وينظرون إليه ، وكان أبو بكر رجلا بكاء لا يملك عينيه إذا قرأ القرآن

، فأفزع ذلك أشراف قريش من المشركين[1]

ترجمه : ما چې خپل مور او پلار پېژندلي هغوی د يو دين متابعت کاوه او په مونږ باندې به هيڅ يوه ورځ نه راتله مګر رسول الله به زمونږ کور ته د ورځو په دواړو طرفونو کې راتلو په سحر کې په ماښام کې بيا ابي بکر ته ښه ښکاره شوه د کور په خوا کې يې يو جومات جوړ کړو هلته به يې پکې مونځ کولو او د قرآن کريم تلاوت به يې پکې کولو د مشرکينو ښځې او زامن به هلته ورته دريدل ورته حيران کېدل به او ورته کتل به يې او حضرت ابو بکر ډير ژړيدونکی انسان وو سترګې يې نشوای په اختيار کې راوستلی (چې اوښکې د ترې لاړې نه شي) کله به يې چې تلاوت کاوه دا د قريشو په مشرانو مشرکينو باندې بده ولګېده (هغوی ترېنه وډار شول هسې نه چې زمونږ د ماشومانو او ښځو زړونه دده په لېدو باندې اسلام ته مائل شي) .

پدې حديث کې ښکاره کيږي چې حضرت ابو بکر صديق دا جومات په لاره کې جوړ کړی وو او نښه يې داده چې د مشرکينو ماشومان او ښځې به ورته دريدلې او ورته کتل به يې او دا جومات دده د

---

[1] رواه البخاري

کور د خوا سره وو د چا لاره یې نه وه تنګه کړې ځکه په اوړده حدیث کې چې د حضرت ابي بکر صدیق ددې جومات خبره راځي نو هلته چې مشرکینو وربانده اعتراض کړی دی هغه هم ددې امله نه دی چې د دوی په لاره کې یې جومات جوړ کړی بلکه ددې امله چې دوی په خپلو ښځو او ماشومانو باندې ډارېدل چې هغوی به د ابي بکر په لیدلو سره اسلام ته مائل شي او دې جومات ته به رسول الله هر وخت ورتلو هغه یې چې منع نه وه کړې نو معنی دا چې روا کار وو .

# د جومات په خوا کې بل جومات جوړول

⇦ چې په کلي کې یو جومات وي او د کلي د خلکو د مانځه لپاره کفایت کوي نو نه ده روا چې په خوا کې ورسره بل جومات جوړ کړي همدا رنګه دا هم نه دي روا چې په څه خبره د اختلاف له امله جومات په دوه برخو تقسیم کړي او کله چې سخت ضرورت شي د مثال په ډول د کلي خلک زیات شي او د موجوده جومات سره په خوا کې نور ځای نه وي چې دا جومات فراخ کړي نو دوی کولی شي بل

جومات جوړ کړي لکن دموجوده جومات تقسیم کول هیڅ د روا والي صورت نلري .

⇦ په هغه ځای کې چې د موجوده جومات د فراخ کولو امکان وي تر نوي جومات څخه د زاړه جومات لویول غوره خبره ده .[1]

⇦ همدارنګه چې ضرورت شي خلک یو جومات ته نشي رسېدلی او یا په یو جومات کې نه ځائیږي نو که جامع جوماتونه هم په یو کلي ، یو ځای ، یوه محله کې متعدد شي نو خیر دی .[2]

دلیل یې ورته دا ویلی دی :

ولأن في تحديد إقامة الجمعة بموطن واحد حرجا عظيما ، ومشقة كبيرة ، والإسلام دين يسر ، فتعددها إذا كان لحاجة وبإذن ولي الأمر – فيه رفع للحرج عن المسلمين ، فهو جائز شرعا .[3]

ترجمه : ځکه دا مقرر کول چې د جُمعې مونځ د په یو ځای وکول شي پدې کې لوی تکلیف دی ، او سختي ده او اسلام د اساني دین دی نو د

[1] المبسوط ، تفسير القرطبي
[2] المبسوط للسرخسي
[3] المبسوط

جوماتونو زیاتوالی چې د حاجت لپاره وي او د ولی الامر په اجازه سره وي پدې کې د مسلمانانو څخه د تکلیف پورته کول دي او شرعاً روا دي .

## په قبرونو جومات جوړول

⇦ که یو قبر وي او که ډېر وي که د مسلمان قبر وي که د مشرک وي په هرصورت جومات وربانديې جوړول نا روا دي رسول الله ورڅخه منع کړيده د حضرت ابي سعيد الخدري نه روايت دی هغه فرمايي : رسول الله فرمايل : الأرض كلها مسجد إلا المقبرة والحمام .[1]

ترجمه : زمکه ټوله جومات ده (مونځ وربانديې صحيح کيږي) بغير د هديرې او حمام څخه (پدې دواړو ځايونو کې مونځ نه صحيح کيږي) .

حضرت عايشه فرمايي رسول الله فرمايل : لعنة الله على اليهود والنصارى اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد .[2]

---

[1] **ابو داود و الترمذي**
[2] **صحيح البخاري**

ترجمه : په يهودو او نصاراوو د د الله لعنت وي د انبياوو له قبرونو څخه يې جوماتونه جوړ کړل .

په بل ځای کې د حضرت ابي هريره نه روايت دی هغه فرمايي رسول الله فرمايل : قاتل الله اليهود اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد .[1]

ترجمه : الله د يهود مړه کړي د خپلو پيغمبرانو د قبرونو څخه يې جوماتونه جوړ کړل .

د حضرت جندب نه روايت دی هغه فرمايي :

سمعت رسول الله – صلى الله عليه وسلم – قبل أن يموت بخمس يقول : " ألا وإن من كان قبلكم كانوا يتخذون قبور أنبيائهم وصالحيهم مساجد ، ألا فلا تتخذوا القبور مساجد ، فإني أنهاكم عن ذلك [2]

ترجمه : ما د رسول الله څخه د هغه د وفات نه پنځه ورځې وړاندې واوريدل چې فرمايل يې : خبر

---

[1] **صحيح البخاري .**
[2] **رواه مسلم**

دار بېشکه لتاسې مخکې خلک چې وو هغوی د خپلو انبیاوو او نیکانو خلکو د قبرونو ځخه جوماتونه جوړ کړل خبر دار اوسئ تاسې له قبرونو ځخه جوماتونه مه جوړوئ زه تاسې لدې ځخه منع کوم .

د حضرت عطاء بن یسار نه روایت دی هغه فرمایي رسول ﷲ فرمایل : اللهم لا تجعل قبري وثنا یعبد ، اشتد غضب ﷲ علی قوم اتخذوا قبور أنبیائهم مساجد .[1]

ترجمه : ای ﷲ ته زما د قبر نه بت مه جوړوې چې خلک یې عبادت وکوي د ﷲ غصه په هغه خلکو باندې زیاته شوه چې د خپلو انبیاوو د قبرونو ځخه یې جوماتونه جوړ کړل .

⇦ او که چېرته چا خپل مړی راوړو په جومات کې یې خښ کړو یعني جومات مخکې جوړ وو او قبر پکې وروسته جوړ کړل شو نو ددې دوه حالتونه دي :

⇦ یو دا چې قبر نوی وي نو علماء کرام فرمایي چې دا به را وکیندل شي او دا مړی به ددې ځای ځخه بل ځای ته نقل کړل شي او هلته به دفن

---

[1] رواه مالك

کړل شي او دا ځای به بېرته له پاکې خاورې څخه ډک کړل شي .

⇦ او که چېرته دا قبر وختنی وو نو د یو قول له مخې صرف هموار د کړل شي او د قبر پورته والی د ترېنه ختم کړل شي او د نورې زمکې سره د برابر کړل شي او د یو قول له مخې چې دا دې هم را وکیندل شي او پاتې هډوکي، خاوره او نور آثار دې لدې ځای نه وویستل شي دا خبرې تولې د مسلمان مړي په حق کې دي نو د کافر او مشرک په اړه خو بیا په طریقه اولی سره دي.[1]

⇦ او پدې جومات کې بیا مونځ بېشکه صحیح دی ځکه دا جومات د قبر لپاسه نه وو جوړ شوی بلکه قبر په جومات کې وروسته جوړ شوی دی.

⇦ او که د قبر سره څوک په جومات کې مانځه ته مجبور شول نو بیا هم پکې مونځ روا دی لکن په مانځه کې به مخ قبر ته نه کوي .

⇦ او که چېرته قبر اول جوړ وو او جومات وربانديې وروسته جوړ کړل شو بیا پدې جومات کې بالکل مونځ نه کیږي بلکه ددې جومات همدا اوس په هر حالت کې ورانول او ړنګول ضروري دي .[2]

---

⇦ [1] المجموع للنووي

[2] **المغني لابن قدامة**

⇦ او که پدې جومات کې چې د قبر لپاسه جوړ شوی دی د جنازي مونځ کول کيږي نو روا دی ځکه د جنازې مونځ په مقبره کې هم کيږي او هغه کس چې بندي کړل شي او له ده سره ددې جومات نه بغير بل ځای نه وي نو هغه کس هم کولی شي پدې جومات کې مونځ وکوي لکن ترڅو يې چې وس وي مخ به د قبر لور ته نه کوي او په داسې ځای کې به مونځ نه کوي چې قبر دده مخې ته راشي .[1]

⇦ که چا جومات ته زمکه ورکړه او په خلکو باندې يې شرط کړل چې زه کله مړ شم ما به په دې جومات کې يو طرف ته خښوئ نو جومات جوړ شو جومات صحيح دی دده وقف هم صحيح دی او دده شرط باطل دی چې کله دی مړ شي نو خلک به يې په جومات کې نه دفن کوي .[2]

⇦ ترڅو پورې چې ممکن وي نو د جومات په کار کې ، جوړښت کې ، ابادي کې ، نقشه جوړولو کې به مسلمان کسان په کار کيږي او که چېرته دوی کوم کار نشوای کولی د ضرورت تر حده پورې به د بل چا څخه مرسته واخلي .

---

1 كشاف القناع

2 إعلام الساجد للزركشي

# جومات ته زمکه ورکول

⇦ جومات ته چې څوک خپله زمکه ورکړي دا زمکه اوس وقف شوه ددې وقف د ملک نه وزي او دا اوس د ټولو مسلمانو شريکه زمکه شوه هېڅوک حق نه لري حتى د زمکې پخوانى مالک هم اوس ددې حق نه لري چې پدې زمکه کې ذاتي تصر ف وکوي .[1]

⇦ دا زمکه يې د مالک له ملک نه وزي او کله يې الله ته د عزت او احترام لپاره اضافت کيږي د الله زمکه ، د الله کور ورته ويل کيږي .

⇦ که چا په خپله زمکه کې جومات جوړ کړو او بيا يې خلکو ته وويل چې راځئ زما په جومات کې مونځ کوئ د امام مالک او امام احمد په مذهب همدا وقف شو .[2]

د دوى دليل دادى چې د وقف د صحت شرط دادى چې وقف شوى شى خلکو ته تسليم کړي او پدې صورت کې يې چې خلکو ته اجازه ورکړه چې دلته مونځ وکوي همدا يو ډول تسليم کول دي ځکه جومات خو هسې

[1] احکام القرآن لابن العربي
[2] المغني لابن قدامه

هم د انتقال قابل شی نه دی چې په بل ډول تسلیم شي همدا د مانځه اجازه یې تسلیم دی .[1]

⇦ د امام ابي حنیفه او امام شافعي په مذهب باندې دا زمکه اوس هم وقف نه ده ترڅو د زمکې مالک په خپله ژبه باندې صراحتاً اقرار ونه کوي چې دا زمکه ما جومات ته وقف کړه .[2]

⇦ د امام صاحب دلیل دادی چې زمکه یې د مالک ده دده خوښه ده چې هر ډول تصرف پکې کوي د خلکو ورته را غوښتل هم یو تصرف دی او دده ملک تر هغه وخته پورې تریږنه نه ساقطیږي ترڅو یې په ژبه باندې اقرار نه وي کړی چې دا زمکه اوس وقف ده .

⇦ که چا جومات ته زمکه ورکړه جومات وربانديې جوړ شو بیا وربانديې دعوه وشوه یا د شفعې یا د ملکیت او یا هرڅنګه دعوه چې وه د امام ابي حنیفه د مذهب له مخې دا دعوه اوس په هغه کس ده چې دا زمکه یې جومات ته وقف کړیده که چېرته دعوه کونکي دعوه وګټله وقف کونکی به هغه ته پیسې ورکوي جومات به بېرته نه ورانول کیږي .[3]

---

[1] المغني لابن قدامة
[2] رد المحتار
[3] شرح فتح القدير لابن الهمام

# جومات د چا په نوم كول

⇦ جومات د يو چا په نوم باندې كول روا دي يو څوك كولى شي په جومات باندې د كوم سړي د كومې ښځې يا كومې قبيلې او يا بل نوم كيږدي او په هغه نوم سره جومات ونومول شي او وويل شي (د فلاني جومات يا فلاني خيلو جومات ، د حضرت بلال جومات، او داسې نور ... )

رسول الله هم په يوه حديث كې د نبوي جومات نسبت پخپله خپل ځان ته كړى دى رسول الله فرمايي :

صلاة في مسجدي هذا خير من ألف صلاة فيما سواه ، إلا المسجد الحرام

ترجمه : زما پدې جومات كې مونځ په نورو جوماتونو كې له زرو مونځونو څخه غوره دى د مسجد حرام نه بغير .

په حديث كې رسول الله وفرمايل زما جومات يعني د جومات نسبت يې ځان ته وكولو .

حضرت عبد الله ابن عمر فرمايي : أن رسول اللّه - صلى اللّه عليه وسلم - سابق بين الخيل

التي لم تُضَمّرْ من الثنية إلى مسجد بني زريق " .[1]

ترجمه : بېشكه رسول الله  د هغه آسونو په مينځ كې مقابله كوله چې ډنګر كړل شوي نه وو (كله چې آس چاغ شي نو څلوېښت ورځې وربانديې د خوراك اندازه كمه كړي چې لږ ډنګر شي دېته تضمير وايي) او دا مقابله د الثنية ځاى نه وه د بني زريق تر جومات پورې .

⇦ پدې حديث كې هم حضرت عبد الله ابن عمر  په ښكاره ډول يو جومات د بني زريق جومات ويلى دى .

⇦ كه څوك خپله زمكه يا خپل دكان، يا خپل باغ او يا بل شى جومات ته وقف كوي نو دا وقف يې صحيح دى ددې باغ ، زمكې او دكان منافع به را اخستل كيږي او د جومات په ضرورياتو كې به مصرف كيږي.

⇦ كه ددې شي په وقف كې وقف كونكي شرط ايښى وو ترڅو چې شرط يې د شريعت خلاف نه وي نو په هغه به عمل كيږي د مثال په ډول كه يې په خپل شرط كې وويل چې دا زما زمكه يا زما باغ جومات ته وقف دى لكن ددې منافع به صرف د جومات په

[1] رواه البخاري

تعمير کې لګول کيږي نو شرط يې په ځای دی ددې وقف شوي شي نه په لاس راغلې پيسې به د جومات په تعمير ، مناره ، ور او کړکۍ او بل شي د اصلاح لپاره لګول کيږي  د امام ، د مؤذن او خادمانو تنخواه ته به ددې پيسو څخه نه ورکول کيږي .

⇦ هغه څوک چې جومات ته دا پيسې ساتي او دا اختيار يې په لاس کې وي هغه د اسلامي حاکم (که موجود وو) په اجازه پدې پيسو کې تجارت هم کولی شي ترڅو زياتې شي او که د تجارت په صورت کې د پيسو د ورکېدو او يا د کوم ظالم د غصب نه ډارېدو نو بيا به يې همداسې جومات ته وساتي بيا به يې نه شوروي .[1]

⇦ که چا د مثال په ډول کور وقف کړو او ويې ويل دا کور مې ددې جومات ملا ته وقف کړو نو پدې جومات کې چې څوک امامت کوي دا کور به د هغه په اختيار کې وي که يې خوښه وي پکې اوسي به او که يې خوښه وي بل چاته يې دې په کرايه ورکړي کرايه به دده خپله وي او که يې خوښه وي بل چاته يې دې د هستوګنې لپاره ورکړي او که يې وويل چې دا کور مې وقف دی پدې کې به د جومات امام اوسيږي نو که امام پکې اوسېدو نو

[1] رد المحتار .

شه ده او کنه نو بیا به په کرایه ورکول کیږي عائد به یې په جومات کې مصرفیږي .[1]

⇦ او که یې د وقف کولو په وخت وویل دا کور مې دي جومات او ددې جومات امام ته وقف کړی دی نو ددې عائد به نیم په جومات کې مصرف کول کیږي او نیم به امام ته ورکول کیږي .[2]

⇦ هغه شی چې حرام وي د هغه وقف جومات ته نه صحیح کیږي همدارنګه د حلال شي وقف هم د حرام کار لپاره نه صحیح کیږي .[3]

⇦ هغه شی چې د جومات وي لکه د جوما ت فرش یا بل چې هر شی وي خلکو ته نه دي روا چې هغه په خپلو ذاتي پروګرامونو کې او ذاتي ضرورتونو کې استعمال کړي او که یې استعمالوي نو جومات ته به ددې شیانو کرایه ورکوي او که کوم شی ضائع شي هماغه ډول بل شی راوړل وربانديې لازم دي همدارنګه که په کوم شي کې نقصان راشي د مثال په ډول نیم فرش وسوزیږي نو جومات ته دهغې تاوان ورکول ضروري دي .[4]

## جومات ړنګول

---

1 رد المحتار
2 رد المحتار
3 رد المحتار
4 إعلام الساجد للزركشي

⇦ که چېرته ټول خلک ددې ځای نه تلل د مثال په ډول خلکو خپل کورونه لدې ځای نه يوړل د څه اسماني آفت له امله يا د خلکو په خپله خوښه نو که دلته خلک د دوی نه وروسته اوسيږي دا جومات به همداسې دوی ته پريږدي نه به جومات ړنګوي او نه به يې خرڅوي که چېرته يې خرڅ کړو اخستونکی يې نه مالک کيږي اسلامي حکومت به يې بېرته ورڅخه اخلي او چا چې پيسې واخيستې هغه د پيسو مالک نه دی له هغه نه به پيسې بېرته واخلي اخستونکي ته به يې ورکړي او که دلته څوک نه اوسيږي او خامخا دا ځای ړنګول وي نو د جومات چې څومره شيان وي هغه به بل جومات ته ورکول کيږي او که دې جومات کومه ګټه درلوده چا ورته زمکه وقف کړې وه چا ورته کور ورکړی وو ددې شيانو ګټه به ټوله بل جومات ته چې دې جومات ته نېږدې وي ورکول کيږي .[1]

⇦ او که چېرته دلته جومات او د جومات زمکه بې فايدې پاتې کېده نو بيا دا جومات خرڅولی هم شي او ددې نه چې کومې پيسې په لاس راشي هغه به ټولې بل چېرته په جومات مصرف کړي لکه مخکې چې تېر شول د امام ابي حنيفه د مذهب

---

[1] رد المحتار

له مخې غوره ده چې همدې جومات ته نېږدې په بل جومات مصرف شي .[1]

⇦ د امام ابي حنيفه بل قول دادی چې جومات وقف دی او د وقف شي خرڅول په هېڅ صورت کې نه دي روا او د امام صاحب ددې قول له مخې که جومات هرڅو شړ پاتې کيږي بيا ئې هم خرڅول صحيح نه دي .[2]

---

1 رد المحتار
2 محيط السرخسي

# جومات ته له کور نه دروازه ور پرېښودل

جومات ته له کور نه دروازه ور پرېښودل نا روا دي په هغه وخت کې چې جومات ته صحابه نېږدې اوسېدل نو جومات ته به يې خپله لاره ور پرېښوده ترڅو هروخت په اسانه سره له کور نه جومات ته ورشي رسول الله امر وکولو چې صرف د ابي بکر صديق لاره د پرېښودل شي نورې د ټولې بندې شي او د حضرت ابي بکر يو خاص فضيلت وو ددې امله هغه ددې حکم نه استثناء کړل شو او د نورو مسلمانانو په حق کې هغه د منع حکم تر اوسه پورې په ځای دی رسول الله فرمايل :

سدوا عني کل خوخة في هذا المسجد غير خوخة أبي بکر.[1]

ترجمه : بندې کړئ له ما نه (زمونږ له مسجد ځخه) ټولې وړوکې دروازې بغير د ابي بکر صديق له دروازې ځخه .

[1] صحيح البخاري

پدې حديث کې رسول ﷲ په ښکاره ډول سره امر کړی دی چې له کورونو څخه د راوتلې ټولې لارې بندې کړل شي او ددې ښکاره منع وجه داده چې يو خو به دا خلک کله جومات د لارې په ډول هم استعمالوي چې له کوم لوري نه راشي نو د لويې دروازې لوري ته د راتاوېدلو په ځای به لنډ په جومات کې تيرېږي او کور ته به ځي او بل کله به د کور نه جومات ته د کور د اوسېدونکو خلکو اوازونه هم راځي چې دلته د عبادت کونکو په عبادت کې د توجه او خشوع مانع به ګرځي .

## د جومات دروازې

د جومات دروازې د جومات له ضروورياتو څخه دي ترڅو پاک وساتل شي ، په امن کې وي ، حيوانات غير ناطقه ور نشي او داسې نور د رسول ﷲ په وخت کې هم په جومات کې دروازې وې په مختلفو او متعددو حديثونو کې در سول ﷲ صلی ﷲ عليه وسلم د جومات د دروازو خبره ياده کړل شوېده لکه په يو اوږده حديث کې دي چې رسول ﷲ په خطبه باندې لګيا وو يو کس له يوې دروازې څخه را ننوت په راتلونکې جمعه باندې بيا رسول ﷲ په خطبه لګيا وو چې هغه کس بيا له هماغه

دروازې څخه را ننوت ... حدیث تر آخره پورې .[1]

⇦ همدارنګه په بل حدیث کې ذکر شوي دي چې رسول الله د جومات د یوې دروازې په اړه وفرمایل :
لو ترکنا هذا الباب للنساء (یعني که دا دروازه مو ښځو ته پرېښې وی (صرف ښځې ددې دروازې څخه ننوتلی)) حضرت عبد الله ابن عمر چې دا واورېدل تر مرګ پورې بیا له هغه دروازې څخه جومات ته داخل نه شو .[2]
⇦ نو مانا (معنی) دا چې د جومات نورې دروازې هم وې چې بیا حضرت عبد الله ابن عمر له هغې څخه جومات ته داخلېدلو هو! بالکل پدې وخت کې د رسول الله د جومات دری دروازې وي رسول الله یوه پکې د ښځو لپاره خاصه کړه .
⇦ پدې دریو دروازو کې یوه د قبلې لور ته وه او په هغه وخت کې قبله د بیت المقدس لوري ته وه کله چې د هجرت په دوهم کال قبله مکې ته وګرځېده نو هغه دروازه بنده کړل شوه په مقابل لوري کې یې بله دروازه خلاصه کړل شوه .
⇦ بله دروازه د غرب له لوري وه هغې ته باب عاتکه ویل کېدل (اوس ورته باب الرحمة وایي

---

1 **صحیح البخاري**
2 **رواه ابو داود .**

سره ددې چې اوس خو هغه نقشه بالکل وجود نلري بیا هم د هغې دروازې په بدل کې یوه دروازه وجود لري) او حضرت عاتکه یوه مبارکه بي بي وه په مکه کې په اسلام مشرفه شوه او بیا الله ورته د هجرت شرف هم ورکړو دا دروازه ددې په نوم وه ځکه چې ددې د کور لوري ته ور خلاصه وه او اوس ورته باب الرحمة ددې امله ویل کیږي چې ددې دروازې نه یو کس را ننوت رسول الله په خطبه کې وو رسول الله ته یې وویل چې د الله نه مونږ ته باران وغواړه رسول الله د باران دعاء وکوله او باران شروع شو مسلسل اوه ورځې باران وو په بله جُمعه کې له همدې دروازې نه هماغه صحابي را ننوت رسول الله ته یې وویل دعاء وکوه چې باران ودریږي.[1]

او همدې دروازې ته باب النبي هم ویل کیږي ځکه رسول الله به هر وخت له همدې دروازې څخه جومات ته ننوتلو .

⇦ بله دروازه د شرق له لوري نه وه دیته باب عثمان ویل کېدل او اوس ددې دروازې په بدل کې دروازې ته باب جبریل ویل کیږي ځکه د بني قریظه یهودو سره چې جنګ کېدو (قصه یې په تفصیل سره زمونږ په سلسله د اسلام تاریخ له

[1] رواه البخاري

پانځو څخه کې تېره شوېده) رسول ﷺ پدې دروازه کې د جبريل عليه السلام سره مخامخ شوی وو او په هغه وخت کې ورته باب عثمان ويل کېدل ځکه د حضرت عثمان د کور مخې ته وه .

⇦ بيا د حضرت عمر د خلافت په دوره کې جومات فراخ کړل شو او دری دروازې پکې نوې جوړې کړل شوې يعنې ټولې شپږ دروازې شوې .

⇦ او په اوس وخت کې چې مسجد النبوي شريف (ﷲ د تل تر تله تازه او سلامت او د عزت او احترام نه ډک لري) د يو مليون څخه د زياتو مونځ کوونکو ځای لري نو لويې او وړې دروازې يې تر سلو څخه آوښتې دي .

## د جومات دروازې بندول

⇦ چې کله د جومات د ننه د موجوده شيانو د ورکېدلو وېره وي نو د جومات د دروازو بندول روا دي او که چېرته امن وي د جومات د شيانو د ورکېدلو وېره نه وي نو بيا مستحب ده چې د جومات دروازه هر وخت خلاصه وي .[1]

دليل يې دادی چې د جومات په بندولو کې فايده داده چې له يوه پلوه د جومات متعلق شيان له ورکېدلو څخه وساتل شي او له بله پلوه جومات د

---

[1] فتح القدير

لېونیانو ، ماشومانو او نورو داسې کسانو څخه په امن کې پاتې شي چې هغوی یا د جومات په قدر نه پوهیږي او یا یې مراعات نه کوي .

⇦ لکن ددې بندولو دا معنی نه ده چې خلک په جومات کې په مانځه یا د الله په ذکر لګیا وي او څوک د راشي ورته وایي چې هلئ ځئ زر کوئ دروازې بندوم بلکه پداسې وخت کې به یې بندوي چې ټول خلک لاړ شي او د دروازو په بندولو کې د چا په عبادت کې مخل نه واقع کیږي او نه وربانديې د چا عبادت نیمګړی پاتې کیږي .

## په جومات کې ونې

د امام ابي حنیفه ، امام شافعي او امام احمد رحمهم الله د مذهب له مخې په جومات کې ونې کېښودل نه دي روا. [1]

دلیل یې دادی چې که په جومات کې ونې کېښودل شي له یوه پلوه به هر وخت له ونو څخه پاڼې را توئیږي له بله پلوه به په ونه کې مارغان کیني او د هغوی ګندګي به شکته را توئیږي او پدې سره به کله د مونځ کونکي توجه خرابیږي او د جومات نظافت ساتل به هم مشکل شي او کله کله به ماشومان هم ورته را ټولیږي او ونه که میوه

---

[1] رد المحتار ٣٥٧/٤

ولـري نـو پـه کـانـو بـه يـې ولـي دا بـه بـيـا مـشکل شي او کېداى شي کـلـه تـرې فـسـاد جـوړ شي .[1]

⇦ ځينې حنفيان وايي چې په جومات کې ونه کېښودل روا دي ځکه د شريعت له لوري وربانـدې کومه منع نه ده راغلې او د پورتنيو تاوانونو څخه علاوه په ونه کې فايدې هم شته د هغې تر سيوري لاندې به خلک مونځ کوي .[2]

⇦ لـکن غوره قول اول دى ځکه پـه جومات کې چې هرڅنګه شي د ونې تاوانونه تر فايدو زيات دي او د سيوري فايده او يا نورې فايدې مونږ د چت جوړولو نه هم اخستلى شو .[3]

⇦ او هغه اوله خبره چې څوک وايي په جومات کې د ونې په کېښودلو څه منع نه ده راغلې نو د هغوى ځواب دادى چې جومات د کښت او کرهڼې ځاى نـه بـلـکـه د عبادت ځاى دى د رسول الله ، صحابه کرامو او تابعينو په وخت کې په جومات کې چا ونـې نـه کېښودلې نو زمونږ جوماتونه هم بايد د همـاغـه قـرون اولـى پـه ډول شي چې ونـې پـکې نـه وي .[4]

---

[1] المغني
[2] رد المحتار ١/ ١٦٦
[3] المغني
[4] الاشباه و النظائر للسيوطي

⇦ نو ددې امله د امام ابي حنيفه قول چې په جوماتونو کې ونې کېښودل نا روا دي غوره دی خو دا د جومات کې په دننه ساحه کې او منع دی که د جومات په شاوخوا کې خلک باغ جوړوي چې جومات ته پکې څه ضرر نه وي نو هېڅ پرواه پکې نشته بلکه کله د جومات په شاو خوا کې د باغ کېښودل سوچه فایده وي .

## د جومات فرش

⇦ د رسول الله په زمانه کې په جومات کې فرش نه وو بلکه ریګ او شګې به پکې هموارې وې لکه د حضرت معیقب نه چې روایت دی هغه فرمايي رسول الله يو کس ته د سجدې لپاره د زمکې د هموارولو خبره کوله ورته ویل یې : إن كنت فاعلا فواحدة .[1]

ترجمه : که ته خامخا ځان ته د سجدې لپاره ځای برابرول غواړې نو صرف یو ځل .

⇦ او دا خبره یې په جومات کې د سجدې لپاره ورته کوله او ځکه یې ورته کوله چې په جومات کې د فرش په ځای باندې ریګ او شګې وې او په

[1] **متفق عليه**

هغې باندې به کله سجده نه کېده نو برابرولو ته به یې ضرورت وو .

په بل ځای کې د حضرت ابي ذر نه روایت دی رسول الله فرمایي : اذا قام أحدکم إلی الصلاة فلا یمسح الحصی ، فإن الرحمة تواجهه .[1]

ترجمه : په تاسې کې چې څوک مانځه ته پاڅیږي نو هغه دې په شګو باندې لاس نه را کش کوي ځکه پدې وخت کې رحمت ده ته مخامخ دی (دی دې هم خپله توجه وساتي) .

⇦ او دا خبره هم رسول الله صحابه وو ته په هغه وخت کې کړېده چې په جومات کې مونځ کېدو نو معلومه شوه چې د رسول الله په جومات کې شګې وې چې رسول الله یې صحابه له مسح کولو څخه منع کول .

⇦ د حضرت عبد الله ابن عمر د یو حدیث نه خو معلومیږي چې په مسجد نبوي کې اول خاوره وه په هغې باندې به رسول الله او صحابه وو مونځونه کول بیا وروسته شګه شوه هغه فرمایي :

[1] رواه أحمد وأبو داود

مطرنا ذات ليلة فأصبحت الأرض مبتلة ، فجعل الرجل يجيء بالحصى في ثوبه ، فيبسطه تحته ، فلما قضى رسول الله – صلى الله عليه وسلم – قال : ما أحسن هذا ! . [1]

ترجمه : يوه شپه په مونږ باران وشو (څرنګه چې مسجد نبوي مجهز چت نه درلود نو په جومات کې د ننه هم ) زمکه لنده شوه نو يو کس به چې (جومات ته) راتلو نو په خپله جامه کې به يې شګې ورسره راوړې وې تر خپل ځان لاندې (په هغه ځای کې چې دی به ور باندې کېناستلو) هموارې کړې رسول الله چې دا وليدل نو يې وويل : دا څومره ښه کار دی !

⇦ د شګو د صفايي او له لندې خاورې نه د لرې کېدلو دا تدبير د رسول الله خوښ شو او ستاينه يې وکوله .

⇦ خو په اوس زمانه کې چې هرشي ترقي کړېده نو که څوک جومات ته غوره فرش تيار کړي او په جومات کې يې هموار کړي نو هېڅ ممانعت پکې نشته لکن دا فرش به په يقيني ډول سره پاک وي ، د ژونديو شيانو تصويرونه به پکې نه وي ، د وريښمو څخه به جوړ نه وي او له کوم بل لوري

---

[1] **رواه أبو داود**

نه به حرمت پکې نه وي د مثال په ډول غصب شوی نه وي ، له چا څخه غلا شوی نه وي او داسې نور ...

حضرت انس ابن مالک فرمايي : كنا نصلي مع رسول اللّه – صلى الله عليه وسلم – في شدة الحر ، فإذا لم يستطع أحدنا أن يمكن جبهته من الأرض بسط ثوبه فسجد عليه .[1]

ترجمه : مونږ د رسول اللّه سره په تېزه ګرمۍ کې مونځ کولو په مونږ کې به چې کوم یوه (د تیزي ګرمي له امله ) په زمکه سجده نشوای کېښودلی نو خپله جامه به یې هموار ه کړه او سجده به یې وربانديې کېښوده .

⇦ په پورتني حدیث کې ښکاره شوه چې صحابه وو پداسې حالت کې چې د رسول اللّه سره یې مونځ کولو د سجدې لپاره یې یو څه شی په زمکه ځان ته فرش کول او رسول اللّه یې هم هېڅ ډول منع نه ده فرمایلې .

⇦ لکن هغه فرش چې د هغه شیانو څخه نه وي جوړ کوم چې له زمکې څخه په لاس راځي د مثال په

[1] متفق علية

ډول د حیوان د پوستکي څخه جوړ شوی وي له تارو څخه نه وي جوړ نو ځینې علماء فرمایي چې په هغې باندې مونځ کول مکروه دي او د امام مالک مذهب هم همدای دی هغه فرمایي که بیا هم سخت ضرورت شي پداسې فرش باندې مونځ کول نو وربانديې به ودريږي او سجده به وربانديې نه ایږدي بلکه سجده به په زمکه باندې ایږدي .[1]

⇦ لکن که په جومات کې چا ځان ته جای نماز (وړوکی فرش) واچولو او دا ضروري وه چې په دې فرش باندې به یوازی دی مونځ کوي نو که ده ځان ته دا فرش د کبر له امله خاص کړی وو چې ځان ورته له نورو خلکو نه یو څه محترم ښکاره کېدو نو دا حرام دی او که یې په زړه کې وسوسه وه دا نور د جومات فرش ورته پوره پاک نه ښکاره کېدو نو بیا مکروه دی او که یې عادت وو چې په خپل جای نماز مونځ ورته ډېر خوند ورکول نو بیا بدعت دی او که د کوم ضرورت په بناء وو نو بیا بغیر د کراهیت نه روا دی .[2]

⇦ د جومات فرش چې زوړ شي پاتې ټوټې یې دې خرڅې کړي او په لاس راغلې پیسې یې دې په بل

---

[1] المدونة الکبری لمالك ١/٧٥

[2] إصلاح المساجد ( ص243 )

فرش کې ورکړي او يا د د جومات په نورو مصارفو کې ولګوي .

# په جومات کې پردې ځړول

⇦ په جومات کې د پردو ځړول ځینې علماء بلا کراهیت نه روا بولي او دلیل وربانديې د مکې مکرمې پردې ګرځوي هغه هم جومات دی (المسجد الحرام) او پردې پکې ځړیږي او ځینې علماء کعبه مبارکه تر عام حکم نه خاصه بولي او وایي چې په مسجد نبوي کې د رسول ﷲ په جومات کې او نه د صحابه وو په وخت کې په جومات کې چا پردې ځړولې وې نو دا ناروا دي .

⇦ خو صحیح خبره داده چې که په جومات کې پرده د ګرمي یا د یخني د مخنیوي لپاره وي نو بلا کراهیت نه روا همدارنګه که د ښځو او نرو مونځ کونکو د بیلتون لپاره وي نو بلا کراهیت نه روا او که صرف د ډول لپاره وي لکه په دېوال باندې پرده او داسې نور نو دا بیا مکروه دي له یوه پلوه د جومات بې فایدې ښائسته کول دي او له بله پلوه چې په کوم مصرف کې هېڅ فایده نه وي نو د اسراف په ډله کې راځي .

⇦ محمد بن جمال الدین القاسمي یو عالم دی محاسن التاویل تفسیر یې هم لیکلی دی د هغه یو کتاب دی إصلاح المساجد من البدع والعوائد په هغه کې ده لیکلي دي چې په ځیني ځایونو

کې د جوماتونو په مختلفو برخو کې خاص ډول پردې وي ، په ځینې کونجونو کې ، په ځینې پایو پورې او نور په مختلفو ځایونو کې او هر رنګ او هره پرده د چا په یاد ځړول شوې وي او ویل کیږي چې دا د فلانې ځای دی نو بیا د هغه کس (چې اوس مړ دی او د هغه په یاد باندې دلته پرده ځړول شوې) معتقدین چې هغه ویني نو هماغه کس ورته یادیږي نو دې پردې ته اوس د هغه کس په احترام ګوري او کله کله د تبرک لپاره لاس هم وربانذې را کش کړي نو داسې پردې په جوماتونو کې بالکل حرامې دي .[1]

## د جوماتونو تعمیر

⇦ که په جوماتونو کې قیمتي کاڼي ولګول شي او یا د سرو زرو استعمال پکې وشي پرواه نلري لکن ددې په ځای یې غریبانو ته ورکول غوره دي .[2]

⇦ د قبلې لورې دېوال باندې مختلف اشکال جوړول او ډیزاینونه پکې عملي کول او زیات شکلي کول مکروه دي ځکه هغه د مونځ کونکي توجه جلب کوي او چې د مانځه په دوران کې یې وربانذې نظر ولګیږي نو د مانځه نه یې توجه ور اخلي

---

[1] إصلاح المساجد من البدع والعوائد للقاسمي
[2] السراجية

امام فقیه ابو جعفر د سیر کبیر په شرح کې لیکلي دي د جومات په دېوالونو باندې نقشونه جوړول او ډیزاینونه پکې عملي کول مکروه دي که لږ وي او که زیات وي او که په چت کې یې لږ ښائست پیدا کوي نو ددې رخصت دی او زیاتول یې مکروه دي.[1]

⇦ او که ساده ډیزاین پکې عملي کوي لکه په سپین دېوال باندې تور نقش او یا په تور دېوال باندې سپین نقش کوي نو روا ده لکن دا به هم یو څوک د خپل شخصي مال څخه کوي او هغه مبلغ چې چا د جومات د جوړولو لپاره ورکړی وي هغه وقف دی هغه مال نه داسې مصارف کول نه دي روا ځکه دا د مال په ځای مصرف کول نه بلکه د مال ضائع کول دي.[2]

⇦ د جومات په تعمیر کې چې کار کیږي اوبو ته به یې خاصه توجه کوي هغه اوبه چې مرداري وي د جومات په ابادي کې یې لګول نا روا دي (السراجیة)

⇦ که په جومات کې سره او سپین زر استعمالوي د خپل مصرف څخه روا دي او کومې پیسې چې د جومات د جوړښت لپاره را ټولې شوې وي دهغې نه

---

[1] المحیط

[2] الاختیار شرح المختار

يې كول نا روا دي ځكه دا د پيسو ضائع كول دي (داسې كار كول دي چې ضرورت ورته نشته) .[1]

## مختلف احكام

⇦ د جومات په دېوال باندې نقشونه كول او شيان وربانډې رسم كول مكروه دي او د الله نومونه كلمې ليكل لدې ډلې څخه نه دي هغه د قبلې طرف ته په دېوال چې نه وي غوره خبره ده په نورو ديوالونو يې ليكل مكروه نه دي .

⇦ په جومات كې د حدونو قائمول هغه وخت مكروه دي چې په وينه يا بل شي باندې د جومات د ګنده كېدلو خطر نه وي او كه د جومات د ګنده كېدلو خطر وو نو بيا په جومات كې حد قائمول حرام دي .

⇦ د جومات د احكامو په اړه رسول الله حضرت ابي ذر ته يو ښكلى وصيت كړى دى حضرت ابي ذر فرمايي رسول الله ماته وويل :

يا أبا ذر الكلمة الطيبة صدقة ، وكل خطوة تخطوها إلى الصلاة صدقة . يا أبا

---

[1] فتاوى قاضي خان

ذر من أجاب داعي الله وأحسن عمارة مساجد الله كان ثوابه من الله الجنة ، فقلت : كيف يعمر مساجد الله ؟ قال : لا ترفع الأصوات فيها ، ولايخاض فيها بالباطل ، ولا يشترى فيها ولا يباع ، واترك اللغو ما دمت فيها ، فإن لم تفعل فلا تلومن يوم القيامة إلا نفسك .

ترجمه :

اى ابا ذره كلمه طيبه صدقه ده او هر قدم چې ته د مانځه په لوري ور اخلي دا صدقه ده اى اباذره ! چا چې د الله لوري ته د ور غوښتونكي خبره ومنله او د جومات ابادي يې ښه كړه د الله له لوري يې ثواب جنت دى ما ورته وويل : د الله جوماتونه څنګه اباديږي؟ رسول الله راته وويل : په جوماتونو كې دي اوازونه نه پورته كيږي ، په بې ځايه خبرو كې د نه پكې آخته كيږي ، څه دې پكې نه اخستل كيږي خرڅول كيږي، او ته چې ترڅو په جومات كې وې نو بې ځايه خبرې پرېږده او كه د دا كار ونه كړلو نو د قيامت په ورځ به صرف خپل ځان ملامتوې .

⇦ د کسب ګر کار کول په جومات کې مکروه دي چې هر کار وي اګر که د جهاد لپاره د غیشي تېرونکی هم وي په جومات کې یې کار کول مکروه دي لکن کاتب که په جومات کې کتابونه لیکي پدې سره د علم کتابونه زیاتیږي او یا پدې کتابت کې یوځه د علم زده کړه وي نو بیا مکروه نه دی .

⇦ جومات ته د هغه د چا ننوتل مکروه دي چې په خوله کې یې د خامو پیازو او یا اوږې بوی وي او یا یې بل داسې شی خوړلي وي چې په خوله کې یې د هغه شي بوی پاتې وي .

⇦ کله یې چې یقین وي چې څوک مې نهویني پداسې حالت کې په جومات کې عورت ښکاره کول مکروه دي او که د چا د لیدلو وېره وي نو بیا پکې عورت ښکاره کول حرام دي .

⇦ په جومات کې شګې وارول مکروه دي او وایي چې شګه په جومات کې وار کړل شي ترڅو چې غورځېدلي نه وي په وېشتونکي باندې لعنت وایي .

⇦ په جومات کې ښځینه او نارینه سره شریکدل اګر که دواړه په پرده کې وي بیا هم ناروا دي .

⇦ هغه ماشومان له ځان سره جومات ته بول مکروه دي چې هغوی په جوما ت کې چیغې وهي او اوازونه پورته کوي ، خاندي او یا ژاړي .

⇦ که د حق د ښکاره کولو لپاره مناظره وي نو په جومات کې روا ده او که صرف د یو بل د ملامتولو په موخه وي او آخري نتیجه یې جګړه او یو بل ته سپک الفاظ او د مقابل لوري سره د موجود حق پټول وي نو بیا په جومات کې بلکه هرځای ناروا ده .

⇦ نکاح تړل په جومات کې روا دي مشکل پکې نشته لکن د جومات د آدابو لحاظ به پکې وي په زوره چیغې اوازونه پورته کول و غیره به پکې نه وي .

⇦ د جومات په بام باندې جماع کول (د خپلې مېرمن سره) مکروه دي او په جومات کې په هر صورت حرام دي همدارنګه د جومات دېوال ته متیازې کول هم مکروه دي.

⇦ بغیر د امام څخه که بل څوک په جومات کې ځان ته یو ځای خاص کوي چې په هغه ځای به دی مونځ کوي او که بل څوک هلته کیني دی به یې منع کوي نو دا مکروه دي.

⇦ که چا په صف کې ځای نيولى وو د کوم عذر له امله ورڅخه پاڅېدو نو چې بېرته راشي که په ځاى يې څوک ناست وي نو هغه د ځاى ورته پريږدي د هغه حق دى او که بغير د عذر څخه څوک له نيول شوي ځاى نه پاڅېدل نو بيرته چې راشي که بل څوک وربانديې ناست وو اوس دا د هغه ځاى دى .

⇦ په جومات کې خوراک څښاک کول او ويده کېدل روا دي لکن پدې شرط چې د خلکو د مانځه مشکل او مانع نه وي او د جومات د ګنده کېدو وېره پکې نه وي او په جومات کې داسې شى ونه خوړل شي چې له امله يې په جومات کې بد بوى پيدا کيږي حضرت عبد الله ابن عمر فرمايي :

كنا في زمن رسول الله صلى الله عليه وسلم ننام في المسجد نقيل فيه ( أي ننام وقت القيلولة ) ونحن شباب

ترجمه : مونږ به د رسول الله په زمانه کې په جومات کې ويده کېدو د غرمې خوب به مو پکې کاوه .

⇦ امام نووي فرمايي :

ترجمه : دا ثابت شوي دي چې اصحاب الصفة ، العرنيين، حضرت علي ، حضرت صفوان بن امية او د صحابه وو نور ګڼ کسان په جومات کې ويده کېدل او ثمامة به له اسلام نه وړاندې په جومات کې ويده کېدو دا ټول د رسول الله په زمانه کې وو پدې اړه امام شافعي فرمايي : چې يومشرک کولی شي په جوما کې شپه تېره کړي نو مسلمان خو په طريق اولی سره کولی شي او د مشرک په اړه حکم دی چې صرف مسجد حرام ته نشي ننوتلی که په بل جومات کې کيني پاڅيږي نو خير دی .

⇦ حضرت عبد الله بن الحارث فرمايي : د رسول الله په زمانه کې به مونږ په جومات کې ډوډی او غوښه خوړه .[1]

⇦ د جنابت په حالت کې چې څوک وي او يا ښځه چې د حيض او نفاس په حالت کې وي نو جومات ته يې ننوتل نا روا دي او که چېرته يې ضرورت شي يا د کوم ځناور او يا دښمن څخه وډار شي نو بيا د تيمم ووهي او جومات ته د ننوزي .

⇦ مناره چې په جومات کې د ننه وي نو هغې ته هم د حائضې ، نفاسې او جنب ختل نا روا دي او

---

[1] **رواه ابن ماجه**

که د جومات نه بهر وي لکن په جومات پسې سريښ وي نو همدا حکم يې دی .[1]

[1] رد المحتار

# ضمیمه

په ضمیمه کې مو پام د یو څو مشهورو جوماتونو مختصرو معلوماتو ته را ګرځوم چې د کتاب په آخر کې به یې رنګین تصویرونه هم ستاسې حضور ته ډالۍ کړم انشاء الله لکن ددې مانا (معنی) دا نه ده چې لدې یاد کړل شویو جوماتونو څخه پرته نور په دنیا کې لوی او یا ښکلي جوماتونه نشته بلکه زما سره په کتاب کې صرف د ٤٨ جوماتونو د یادښت ځای دی او زه صرف همدومره را یادوم په راتلونکي کې که الله ته منظوره وه زم زم به د دنیا د لا نورو ښکلیو او مشهورو جوماتونو د معلوماتو په اړه یو ځانګړی کتاب ستاسې تر لاسونو در ورسوي.

ستاسې د هر اړخیزي خوشحالۍ په هیله

مفتي کفایت الله وردګ

## ۱. المسجد الحرام

په سعودي کې د مکې مکرمې په زړه کې واقع د مسلمانانو قبله او د زمکې په مخ باندې تر ټولو نه لمړی جومات دی آخري توسيع (فراخي يې ) د خادم الحرمين الشريفين ملک فهد له لوري په ١٤٠٩ هجري کې وشوه په يو وخت کې پکې 152،000 مونځ کونکي مونځ کولی شي او پدې حساب چې په اوس وخت کې په ټوله دنيا کې تر ټولو نه د زياتو کسانو د مانځه لپاره ځای لري په دنيا کې اول نمبر دی .📷

📷تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲. نبوي جومات

د مدينې منورې د همېشه بهار ښار په زړه کې واقع دی په اسلام کې دوهمه مرتبه لري او کله چې رسول ﷲ مدينې منورې ته هجرت وکولو د مسجد قباء نه ئې وروسته ددې جومات بنسټ کېښود د آخري ځل توسيع (فراخوالي) نه چې د خادم الحرمين ملک فهد له لوري نه د هجرت په ١٤٠٥ کال کې وشوه ا وس يو مليون او څه زيات کسان پکې په يو وخت مونځ کولی شي په مسجد الحرام

پسې په مرتبه کې هم دوهم دی او په مساحت کې هم دوهم نمبر دی .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۳. د الا قصی جومات

د مسلمانانو لمړی قبله تاریخي جومات په فلسطین کې د القدس په ښار کې واقع دی د جوړېدلو معین تاریخ یې معلوم نه دی لکن په یو حدیث کې رسول ﷲ د پوښتنې کونکي په ځواب کې ویلي دي چې مسجد اقصی په زمکه باندې دوهم جومات دی چی اول یې مسجد حرام دی ۱٤٤۰۰۰ متره مربع ساحه یې نیولې ده او ددې جومات لپاره همدا نوم په قران کریم کې راغلی دی چې ﷲ ﷻ فرمایي :

سُبْحَانَ ٱلَّذِى أَسْرَىٰ بِعَبْدِهِ لَيْلاً مِّنَ ٱلْمَسْجِدِ ٱلْحَرَامِ إِلَىٰ ٱلْمَسْجِدِ ٱلأَقْصَى ٱلَّذِى بَارَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَآ إِنَّهُ هُوَ ٱلسَّمِيعُ ٱلبَصِيرُ.

ترجمه : پاکي ده هغه ذات لره چې بیولی یې وو بنده خپل (محمد ) په (یوه برخه د) شپې کې له (مینځه یا له څنګه) د مسجد حرام څخه تر مسجد اقصی پورې هغه چې برکت اچولی دی مونږ چار چاپېر د هغه (بیول د محمد ددې لپاره وو) چې

هلته وښیو مونږ دغه (محمد ) ته ځینې له دلائلو (د قدرت) خپل بېشکه چې همدغه الله همدی دی ښه آوریدونکی (د ټولو اقوالو) ښه لیدونکی عالم په ټولو او ښکاره وو .

مسجد اقصی د مساحت په اعتبار باندې په دنیا کې تر ټولو نه لوی پنځم جومات دی .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ٤ . د قباء جومات

د اسلام لمړی جومات دی په مدینه منوره کې واقع دی رسول الله چې هجرت وکولو مدینې منورې ته تر رسېدلو ١٤ ورځې وروسته یې ددې جومات د تعمیر کانې کېښودو د مدینې منورې په جنوب غرب طرف کې پروت دی او د مسجد نبوي نه ٥ کېلو متره لرې دی الله ددې جومات په اړه فرمايي :

لَمَسْجِدٌ أُسِّسَ عَلَى التَّقْوَى مِنْ أَوَّلِ يَوْمٍ أَحَقُّ أَنْ تَقُومَ فِيهِ فِيهِ رِجَالٌ يُحِبُّونَ أَنْ يَتَطَهَّرُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُطَّهِّرِينَ [1]

ترجمه : خامخا هغه مسجد (د قباء) چې ایښودل شوی دی بنیاد یې پر تقوی (پرهیز ګاري) له اولې ورځې نه ډېر لائق ددې دی چې ودرېږې ته په هغې کې (لپاره د مانځه) په دغه (مسجد) کې هسي سړي دي چې خوښوي دوی دا چې ښه پاک وساتي دوی (ځانونه خپل د ګناهونو او نجاستونو څخه) او الله خوښوي ښه ځان پاکونکي (چې ډېر ثواب ورکوي) .

حضرت عبد الله ابن عمر ددې جومات په اړه فرمايي :

ان رسول الله يأتي مسجد قباء راكبا وماشيا فيصلي فيه ركعتين. [2]

---

[1] سورة التوبة ١٠٨

[2] رواه البخاري ومسلم

ترجمه : بېشکه رسول الله به دې جومات ته په پښو او یا په څه شي باندې سپور راتلو او دلته به یې دوه رکعته مونځ کولو .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٥. د قبة الصخرة جومات

دا هم د مسجد اقصی سره په فلسطین القدس ښار کې واقع دی د عبد الملک بن مروان په حکم په ٦٨٨ میلادي کې شروع شوی وو او په ٦٩٢ میلادي کی پای ته رسېدلی وو .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٦. د خښتي پله جومات

د افغانستان د زړه کابل په زړه کې واقع یو له پخوانیو او زړو جوماتونو څخه دی په ۱۸۰۰ میلادي کې جوړ شوی دی او په ۱۹۶۰ میلادي کال کې د افغانستان د بادشاه ظاهرشاه له لوري ترمیم شوی وو او اوس په کابل کې د زړو تعمیرونو په حساب کې راځي لکن په کابل کې تر اوسه پورې تر ټولو نه لوی جومات دی.

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٧. د خلقې شریفې جومات

دا جومات په افغانستان کې د قندهار په ښار کې واقع دی او په قندهار کې یو له هغه ځایونو څخه دی چې څوک قندهار ته لاړ شي ددې ځای زیارت کوي ویل کیږي چې ۲۵۰ کاله وړاندې احمدشاه دراني د لوی جنګ نه وروسته د رسول الله چپنه (خلقه) مبارکه دلته راوړې ده او دې جومات ته د قندهار جامع جومات هم ویل کیږي.

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٨. د هرات جامع جومات

د افغانستان په هرات ولایت کې لمړی جامع جومات دی د هرات جامع جومات بنسټ ایښودونکی سلطان

غياث الدين غوري دی، چې دده زيارت هم دهمدې جومات په شمالي برخه کې تر يوې ګنبدې لاندې دی او دامشهور واکمن په ۱۲۰۲ م کال کې په حق رسيدلی دی.

د دې جومات په جنوبي برخه کې د غوريانو د دورې يو څه نقش او نګار هم پاتي دی، چې هلته يوه ښه روښانه او ښکلې کتيبه هم تر سترګو کيږي، چې د سلطان غياث الدين نوم پرې ليکل شوی دی.

دا جومات چې کله د تيموريانو په دوران کې د دويم ځل لپاره نقش و نګار شو ، دغوري دورې نقش پکې له منځه ولاړ، چې مخکې يې يادونه وشوه ، يوازې په يوه برخه کې پاتې و، خو په ۱۹۴۳ م ۱۳۲۲ هـ ش کال کې بيا کار پيل شو او په دې اړه زيار ايستل کېده، چې هغه پخوانی بڼه برسېرنه او د تيموري دورې نقش ترې يو پلو ته کړي چې دا کارونه د تيموري پاچا سلطان حسين بايقرا په وخت کې صورت نيولی و، چې دهغه واکمنی دوره له ۱۴۶۸ څخه بيا تر ۱۵۰۶ م پورې يوه زرينه دوره وه.

📷تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۹. د روضې جومات

د افغانستان د مزار شريف په ښار کې واقع پخوانی تاريخي جومات دی چې په ۱۵۱۲ ميلادي کې جوړ شوی دی او د هغې نه وروسته د مختلفو واکمنانو له لوري تر ۲۰۰ ځلو زيات ترميم شوی

دی د جوړښت په اعتبار شکلی خصوصیت لري د اسلامي فن مظاهره پکې شوېده او په لوړه پیمانه اسلامي نقاشي پکې کارول شوېده .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱۰. د خوست جومات

دا جومات په وروستیو کې د افغانستان دخوست ولایت په مرکز د خوست په بازار کې په ډېر شکلي او عصري تعمیر سره جوړ شوی دی د جومات شکلي او دنګ تعمیر د خوست بازار ته یوه نوې شکلا ورکړېده او څرنګه چې په نېږدې کې ورته غر او غونډۍ او تر جومات لوړ تعمیر وجود نلري نو د خوست د جومات شکلې او خوشحالونکې منارې د بازار له هر ځای نه ښکاره کیږي ددې جومات د تعمیر نېکمرغي او نعمت د جهادي امیر الحاج جلال الدین حقاني په هلو ځلو باندې د خوست بازار ته ور په برخه شو او په پکتیا کې مرکزي جومات ګڼل کیږي .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۱۱.د حاجي عبدالرحمان جومات

دا جومات چې د کابل په لوی مسجد هم مشهور دی، د افغانستان د لویو جوماتونو څخه دی چې د کابل ښار په مېنځ کې پروت دی. دا جومات د ښار په زړه کې د سوداګریزو مرکزونو په ګڼه ګونه کې او د پښتونستان څلورلارې او پلازا هوټل ته نژدې د ده افغانان په سیمه کې پروت دی دې جومات دریم نیم ایکره زمکه نیولې ده او یو ایکر 4046.86 مربع متره وي په دریو منزلونو کې جوړ شوی دی چې یو منزل یې د ښځینه مونځ کونکو لپاره خاص کړل شوی دی په دې جومات کې په یوه وخت ۱۰۰۰۰ عبادت کوونکي لمونځ کولای شي د تعمیر کار یې په عملي توګه په ۲۰۰۱ کې د افغاني تجار حاجي عبد الرحمن لخوا شروع شو (چې جومات هم د همده په نوم دی) لکن د جومات د مکمل کېدو څخه وړاندې هغه وفات شو د جومات پروژه یې بیا د زامنو لخوا نه مخ په وړاندې یوړل شوه بیا د جنګي حالاتو له امله د یو څه وخت لپاره ولاړ وو او په ۲۰۰۹ کال کې یې لوی کارونه ختم او جومات مکمل شو لکن رسمي افتتاح یې بیا په ۲۰۱۲ کې وشوه د انجینري کار یې افغان انجینر حفیظ الله هاشمي کړی دی جومات له خپل ځان سره یوه مدرسه هم لري او یوه کتابخانه لري چې په ۱۵۰۰۰۰ کتابونو باندې مشتمله ده .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۱۲. د ملک فیصل جومات

دا جومات چې د سعودي بادشاه ملک فیصل په نوم دی د پاکستان د پلازمینې اسلام اباد په ښار کې واقع دی د لوی والي او خپل عجیب ډول هندسې ډیزاین له امله په ټوله نړۍ کې شهرت لري په ۱۹۶۶ کال کې ملک فیصل د پاکستان په دوره راغلو او ددې جومات منظوري یې ورکړه په ۱۹۶۹ میلادي کال کې د مسابقې په ډول د دنیا په سویه د مشهورو انجینرانو څخه وغوښتل شول چې د جومات لپاره یوه نقشه تیاره کړي پدې ترڅ کې ۴۳ په زړه پورې او ښکلې نمونې مخې ته راغلې د څلورو ورځو مشورو څخه وروسته د ترکي انجینیر ودعت دالوکاي نقشه خوښه کړل شوه په ۱۹۷۶ کال کې د سعودي د حکومت په مالي مصرف یې په جوړښت باندې شروع وشوه او په ۱۹۸۶ کال کې د ۱۲۰ ملیونو امریکي ډالرو په لګښت باندې د جومات او ورسره په خوا کې د جامعې د جوړښت کار پای ته ورسېدو نقشه یې ډېره عجیبه ده او د جومات مساحت هم زیات دی په یو وخت کې پکې دری لکه مونځ کونکي مونځ کولی شي او د مساحت په اعتبار په دنیا کې له لویو جماتونو څخه دی .

په ډېرو خصوصیاتو کې یې یو دادی چې ګنبد یې د کوچیانو د خیمې په ډول جوړه شوېده او ډېره په زړه پورې ښکاره کیږي الله د دا ټوله سعی ملک فیصل ته قبوله کړي .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱۳. د محبت خان جومات

د پاکستان په ښکلی ښار پېښور کې واقع دی په کال ۱٦٧٠ میلادي کې هغه وخت جوړ شوی دی چې د مغولو د حکومت په دور کې د پېښور والي نواب محبت خان وو ددې جومات د جوړښت ټول کارونه او لګښت د هغه تر نظارت لاندې شوي دي د پېښور په زړه کې واقع دی د ړومبي ځل لپاره دلته جومات په ١٦٣٠ کې جوړ شوی وو خو محبت خان هغه ډېر لوی کړو او ښکلی یې جوړ کړو په خپل تعمیر کې د مغولو د وخت نقاشي او ډیزاین له ځان سره لري په مینځ کې د اوبو یو لوی حوض د جومات په د ننه ښکلا کې نور هم زیادت راولي .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱٤. د بادشاهي جومات

د پاکستان د پنجاب په ایالت کې د لاهور په لوی ښار کې واقع دغه ښکلی او زړه را ښکونکی جومات په ١۶٧٣ کال کی د مغولو د امپراطور اورنګزیب عالمګیر په هدایت جوړ شو. دغه عظیم مسجد د مغولو د اسلامی معمری فن د مثالونو څخه دی.

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱۵. د وزیر خان جومات

دا جومات د پاکستان د پنجاب په ایالت د لاهور په ښار کې واقع دی د امیر وزیر خان په وخت کې چې د مغول امپراطور شاه جهان د حکومت په دوره کې په لاهور باندې والي وو په کال ۱۰۵۳ هجري چې د ۱٦٤۳ میلادي سره سمون خوري جوړ شوی دی د مغولو د وخت د ډیزاین شکلې نموني لري او یو له هغه جوماتونو څخه دی چې د خپل عجیب ډیزاین او عجیبې انجینري له امله په دنیا کې شهرت لري .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱٦. د شاه جهان جومات

دا جومات په سندهـ پاکستان کې د تاتا په نوم ځای کې د مغول امپراطور شاه جهان په وخت کې جوړ شوی دی د کراچي د ښار د مرکز نه په ۱۰۰ کیلو متري فاصله کې د شاه جهان د جومات د شکلي جوړښت سره پروت دی نقشه او تعمیر یې زړه را ښکونکی دی او د مغولو د وخت د ډیزاین د فن او هنر عجیبه نمونه ده د ۱٦٤٤ او ۱٦٤۷ میلادي کلونو په دوران کې جوړ شوی دی دا جومات په ټوله دنیا کې د ګنبدو ریکارډ لري چې تر ۹۳ زیاتې او د سلو شاخوا ګنبدې لري او دا په دنیا کې د یوه جومات لپاره تر ټولو نه زیاتې ګنبدې دي .

تصویر یې لېږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱۷. د ملغلرې جومات (مسجد موتي)

د پاکستان د پنجاب ایالت د لاهور په ښار کې دا جومات هم د مغولو د حکومت له وخت نه د تاریخي جوماتونو په قطار کې پاتې دی په قلعه لاهور کې د ننه مغرب لوري ته د عالمګیر ګېټ سره نږدې واقع دی دده سپین او ځلاند تعمیر ده ته د ملغلرې نوم ورکړی دی د ۱۶۳۰ او ۱۶۳۵ میلادي کالونو په دوران کې جوړ شوی دی .

تصویر یې لېږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱۸. سور جومات (لال مسجد)

د پاکستان په پلازمینه (مرکز) اسلام اباد په زړه کې په آبپاره نومي ځای کې واقع دی په ۱۹۶۵ میلادي کال کې جوړ شوی دی د سرو کانو د جوړښت له امله دېته د لال مسجد اردو نوم چې په پښتو کې یې ترجمه په سره جومات سره کیږي کېښودل شو په خوا کې ورسره لویه مدرسه واقع ده دې جومات هغه وخت ډېر شهرت پیدا کړو چې په ۲۰۰۱ کال کې لدې ځای نه د پاکستان په مرکز اسلام اباد کې کې په افغانستان کې د طالبانو د اسلامي ا مارت په تائید او د امریکا د تعرض په خلاف مظاهرې وتل شروع شول او د جومات په خواکې

د مدرسې طالبانو به پدې مظاهرو کې لویه ونډه اخسته او دا خبره هغه وخت ډېره لویه شوه چې په ۲۰۰۷ کال کې هلته د مېشتو طالبانو او د حکومت په مینځ کې مسلح جنګ وشو .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۱۹. لوی جومات (المسجد الكبير)

د الجزائر په مرکز کې په شارع البحرية باندې واقع دا جومات د یوسف بن تاشفین د حکومت په دوره کې د هغه تر نظارت لاندې په ۱۰۹۷ میلادي کې چې د ٤٨٩ هجري سره سمون خوري جوړ شوی دی په الجزائر کې د تاریخ په حساب تر ټولو نه زوړ جومات دی او زیاته سابقه لري .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۰. د استقلال جومات

دا مسجد د اندونیسیا په پلازمینه جاکارتا کې واقع دی د خپل لوی والي او عجیب تعمیر له امله شهرت لري او په جنوب شرق آسیا کې تر ټولو لوی جومات دی په ۱۹۷۵ میلادي کال کې د اندونیسیا د حکومت په مصرف جوړ شوی دی یوه مرکزي ګنبده لري چې قطر یې ٤٥ میتره دی او دا ډېر زیات دی په یوه کونج کې یوه مناره لري چې د خپل جوړښت له امله لیدونکی په حیرانتیا کې اچوي پدې جومات کې مختلف ډول اسلامي تربیتونه ورکول کیږي او د نارینه او ښځو لپاره مختلفي تعلیمي شعبې دلته کار کوي او په یو وخت کې دلته یو لک شل زره ۱۲۰۰۰۰ مونځ کونکي مونځ کولی شي .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۱. د الحسن الثاني جومات

دا جومات په دار البیضاء په المغرب دولت کې واقع دی په ټوله دنیا کې د مساحت په اعتبار تر ټولو نه لوی اوم جومات دی په ټوله دنیا کې د تر ټولو نه لوړې منارې لرونکی جومات دی د منارې لوړ والی یې ۲۱۰ متره دی چې تردې لوړه مذهبي ابادي په دنیا کې نشته په ۱۹۸۷ میلادي کال کې د الحسن الثاني تر نظارت لاندې ددې جومات د ابادي کار پیل شو په ۱۹۹۳ کې د اګست په میاشت کې چې د هجرت د ۱٤۱٤ سره سمون خوري د مولود شریف په شپه باندې پای ته ورسېدو په

یو وخت کې ۱۰۵۰۰۰ یو لک پنځه زره کسان پکې مونځ کولی شي .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۲. د الصالح جومات

د یمن په مرکز الصنعاء کې واقع دی د مساحت په اعتبار په ټوله دنیا کې څلورم جومات دی ۱. مسجد حرام ۲. مسجد نبوي ۳. د شیعه ګانو جومات (حرم امام رضاء) او څلورم همدا جومات دی ډېره لویه ساحه یې نیولي ده په شاوخوا کې د موټرو د درېدلو ځای، شنه ساحه، یوه ښکلې مدرسه (کلیة علوم القرآن) او نور ډېر سهولتونه لري او د منارو په حساب په ټوله دنیا کې څلورم د لوړې منارې لرونکی جومات دی ۱. مسجد حسن الثاني دی په المغرب کې مناره یې ۲۱۰ متره لوړه ده ۲. دوهم مسجد الفتح دی په القاهره مصر کې مناره یې ۱۳۰ متره لوړه ده ۳. دریم مسجد نبوي دی دهغه منارې ۱۱۰ متره لوړې دي ٤. څلورم جامع شیخ زاید دی د هغه څلور منارې دي ۱۰۷ متره لوړي دي او پنځم بیا همدا جومات دی مناره یې ۱۰٦ متره لوړه ده نوم یې د الرئیس علی عبد ﷲ الصالح دی چې د چا تر نظارت لاندې جوړ شو صرف د ننه په جومات کې ٤٥۰۰۰ پنځه څلویښت زره کسان په یو ځای مونځ کولی شي او ددینه علاوه د نورو مونځ کونکو لپاره هم ځای لري او د زرګونو ښځو لپاره بېل د مانځه ځای لري د تعمیر او ښائست له امله ډېر مشهور دی چې یو ځل د انسان سترګې واخلي زړه نه غواړي

چې سترګې ترې بلې خواته واوړي د ننه په دېوالونو او دروازو باندې يې د عربي خطاطي غوره نمونې پرتې دي او د جومات په دېوالونو باندې الفاتحة، يس، الرحمن، القدر، العصر، الإخلاص، الفلق او الناس سورتونه مکمل ليکل شوي دي او ډېر په زړه پوري عربي خطاطي پکې کارول شوېده دا جومات زوړ نه دی يو څو کاله وړاندې يې په ۲۰۰۸ کال د نومبر د مياشتې په ۲۱ مه باندې د تعمير کار مکمل شو او افتتاح يې وشوه .

تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۳. د الازهر جومات او جامعه

د الازهر جامعه په دنيا کې د ډېرو پخوانيو جامعو څخه يوه ده او د جامعة القرويين (په المغرب کې ده) وروسته په ټوله نړۍ کې لمړۍ جامعه ده دا په القاهره مصر کې موقعيت لري د دولة فاطميه په اوائلو کې د جامع القاهره په نوم جوړه شوه چې بيا وروسته ورته د الازهر نوم وکارول شو د تهداب تيږه يې په ۳۵۹ هجري کې د جمادی الاول په څوارلسمه باندې کېښودل شوې ده خليفه المعز لدين الله الفاطمي پکې د ۳٦۱ هجري د روژې د اولې جُمعې مونځ وکړو او دا يې د نوي دولت رسمي جومات اعلان کړو او دلته يې ديني درسګاه اعلان کړه اول دلته صرف ديني علوم وو بيا وروسته د جامعې د ترقي سره پکې نور علوم ځای په ځای شول دا اسلامي جامعه يو شکلی او په زړه پورې جومات (د الازهر جومات) په

خپله خوا کې لري دا جومات چې په ډېر عجیب طرز سره جوړ شوی دی کافي فراخ او لوی دی څلور لوړې لوړې په زړه پورې منارې لري او د جومات په د ننه ساحه کې یې په یو وخت باندې ۲۰۰۰۰ شل زره مونځ کونکي مونځ کولی شي .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۲٤. المسجد الجامع

دا جومات په هندوستان کې د دهلي د ښار په مینځ کې واقع دی او په ۱٦٥٨ میلادي کال کې د شاه جهان له لوري جوړ شوی دی او په هندوستان کې تر ټولو نه لوی جومات دی په یو وخت کې صرف د ننه په جومات کې ۲٥۰۰۰ پنځه ویشت زره مونځ کونکي مونځ کولی شي د دهلي په ښار کې د شاندني شوک په سړک واقع دی چې په پخواني دهلي کې تر ټولو نه د زیات بېربار لرونکی ځای وو د جومات د ننه ساحې نه بغیر بیرون ډېره زیاته فراخه احاطه لري په مینځ کې یې د ابو حوض دی چې ځینې خلک هلته اودسونه کوي او ددې جومات ډېر خصوصیات دي د مثال په ډول په عجیب طرز جوړې شوې دری ګنبدې او په زړه پورې لوړې عجیبې جوړې منارې ددې ټولو سربېره دې جومات په خپل زړه کې د قرآن کریم یوې قیمتي نسخې ته ځای ورکړی دی چې ټوله د هوسۍ په څرمن باندې لیکل شوېده جومات خپله یوه منظمه اداره لري هغه کسان چې داسې جامې یې آغوستلې وي چې لستوڼي ونلري د جومات د آدابو له مخې هغه ته د ننوتلو اجازه نه ورکوي.

تصویر یې لېږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۵. د شیخ زاید جومات

دا جومات په دبی کې د ابي الظبی په ښار کې واقع دی د خپل عجیب تعمیر له امله په دنیا کې شهرت لري او د منارو د لوړ والي په اعتبار په ټوله دنیا کې د وتلو جوماتونو څخه دی ۱. مسجد حسن الثاني دی په المغرب کې مناره یې ۲۱۰ متره لوړه ده ۲. دوهم مسجد الفتح دی په القاهره مصر کې مناره یې ۱۳۰ متره لوړه ده ۳. دریم همدا جومات دی چې څلور منارې لري او هره یوه یې ۱۰۷ متره لوړ والی لري د مساحت په اعتبار هم ددنیا په لویو جوماتونو کې شمارل کیږي په یو وخت پکې ۴۰۰۰۰ څلوېښت زره کسان مونځ کولی شي نوم یې د شیخ زاهد بن السلطان آل نهیان د دبی د بادشاه له نوم څخه اخیستی دی د چا تر نظارت لاندې چې ددې جومات تعمیر په ۱۹۹۸ میلادي کې شروع کړل شو او په ۲۰۰۸ کال کې پای ته ورسېدو لکن اول مونځ پکې د لوی اختر د ۲۰۰۷ د دسمبر د میاشتې په ۱۹ تاریخ اداء کړل شو او د تعمیر کار په هغه وخت کې هم لا جریان درلود .

تصویر یې لېږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲٦. بیت المکرم جومات

دا جومات د بنګله دېش په مرکز ډکه کې واقع دی په ۱۹٦۰ هجري کې جوړ شوی دی ښکلی تعمیر لري او د دنیا په لویو جوماتونو کې شمارل کیږي او په یو وخت پکې ٤۰۰۰۰ مونځ کونکي صرف په د ننه ساحه کې مونځ کولی شي .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۷. یوسف بي جامع جومات

دا جومات په داغستان کې په محج قلعه نومي ځای کې دی د خپلې ښکلا له امله دې جومات ته د داغستان ملغلره هم ویل کیږي په ۲۰۰۹ کال کې یې نوی ترمیم شروع شو او په ۲۰۱۰ کې پای ته ورسېدو ښکلی او زړه راښکونکې منظره لري او ۱۷۰۰۰ مونځ کونکي پکې په یو وخت مونځ کولی شي .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۸. د احمد قدیروف جومات

دا جومات د چیچنیا په مرکز ګروزني کې واقع دی د روسیې په علاقه کې یو له هغه جوماتونو څخه

دی چې ډېر لوی دی او د خپل تعمیر او ښکلا له امله ځانګړی شهرت لري او د خپلې ښکلا له امله د چیچنیا د زړه لقب ورکړل شوی دی نوم یې د احمد قدیروف له نوم څخه اخیستی دی دا د چیچینیا رئیس جمهور وو د چا تر نظریه لاندې چې ددې جومات کار شروع شوي او ددې جومات تاریخ ډېر زوړ نه دی په ۲۰۰۸ کال کې یې د اکتوبر په ۱٦ مه نیټه د چیچین مشر رمضان قدیروف له لوري افتتاح وشوه او په یو وخت باندې یوازې د جومات په د ننه ساحه کې لس زره مونځ کونکي مونځ کولی شي او دا هم یو له هغه جوماتونو څخه دی چې لوړې منارې لري چې لوړ والی یې ٦۲ مترونو ته رسیږي .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۲۹. د نغارا جومات

دا جومات د مالیزیا په کولالمپور ښار کې دی او د مالیزیا د حکومت مرکزي جومات دی د جنوب شرق آسیا په لویو جوماتونو کې حسابیږي په ۱۹٦٥ میلادي کال کې جوړ شوی دی او په ۱۹۸۷ کې یې ترمیم شوی دی په تعمیر او ښکلا کې ځانګړی خصوصیت لري په د ننه ساحه کې یې ۱٥۰۰۰ پنځلس زره مونځ کونکي په یو وخت مونځ کولی شي او په شاوخوا کې نوره هم ښکلې ساحه لري د شاوخوا ونو یې ښکلا نوره هم زیاته کړېده یوه لوړه مناره لري چې لوړ والی یې ۷۳ متره ته رسیږي .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۳۰. لوی جومات

دا جومات په کویټ دولت کې د خلیج عربي سره نږدې واقع دی د کویټي مشر جابر احمد الصباح په امر په ۱۹۷۹ میلادي کال کې یې په کار باندې شروع وشوه او په ۱۹۸٦ میلادي کال کې پای ته ورسېدو او ۱٤۰۰۰۰۰۰ څوارلس میلیونه کویتي دینار وربانډې مصرف شول په ډېر مهارت سره یې کار شروع او پای ته ورسېدو د ٤٥۰ ماهرو کارکونکو سره ۵۰ انجینران وربانډې په کار لګیا وو په کوېټ کې د لویو جوماتونو څخه ګڼل کیږي او تر هر وخت نه زیات خلک دلته د رمضان په ۲۷ شپه باندې مونځ کوي او دا جومات د ۱۷۰۰۰۰ د یو لک اویا زره مونځ کونکو لپاره بس کیږي او د ټولې دنیا په سویه هم په لویو جوماتونو کې شمېرل کیږي په هر قسم سهولتونو باندې ښایسته کړل شوی دی د زنانه وو لپاره مکمله بېله لار او بېل د مانځه ځایونه لري .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۳۱. د سلطان احمد جومات (جامع ازرق (شین جومات))

دا جومات د ترکیې د استنبول په ښار کې دی په ترکیه کې بلکه په ټوله دنیا کې یو له لویو جوماتونو څخه ګڼل کیږي د ۱٦۰۹ او ۱٦۱٦ کلونو په مینځ کې جوړ شوی دی په ډېر ښکلي او په زړه پورې ځای کې له دریو طرفونو څخه لویه قلا

ورڅخه تاو ده په قلا کې پنځه دوازې دي دری یې د جومات صحن ته ور خلاصې دي او دوې یې راساً د مانځه ځای ته ورخلاصې شوې دي شپږ ډېرې لوړې او په زړه پورې منار لري چې په ډېر لوی مصرف باندې جوړې شوي دي .

دې جومات ته شین جومات هم ویل کیږي ځکه د جومات د ننه په دیوالونو باندې د شین رنګ ډېر قیمتي کاشي او سنګ مرمر لګېدلي دي .

سلطان احمد اول په حکومت کې او د هغه تر نظارت لاندې جوړ کړل شوی دی ځکه یې د هغه نوم اخیستی دی .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۳۲. د احمد الفاتح جومات

دا جومات د بحرین په مرکز منامه ښار کې واقع دی په بحرین کې یو د ښکلیو او د لیدلو د قابل ځایونو څخه دی په ۱۹۸۳ میلادي کال کې د شیخ احمد الفاتح له لوري د بحرین د فتح د سلو کلونو د پوره کېدلو په تجلیل کې د امیر البلاد الیشخ عیسی بن سلمان آل خلیفه له لوري ددې جومات د بنسټ تیږه کېښودل شوه او په ۱۹۸۷ کې مکمل شو دا جومات په منامه کې د اسلامي مرکز په ډول کارول کیږي چې مختلف ډوله اسلامي تعلیمي کارونه پکې مخ په وړاندې ځي او د مطالعې لپاره ورسره په ۲۰۰٦ کال کې د الشیخ عیسی بن سلمان لویه کتابخانه هم خلاصه شوه د

ښکلي تعمیر او زړه را ښکونکي ډیزاین له امله دا جومات نه یوازې په بحرین کې بلکه په ټوله دنیا کې شهرت لري او یوازې د جومات په د ننه ساه کې د ۷۰۰۰ اوه زره مونځ کونکو لپاره ځای لري .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۳۳. د کولالامپور جامع جومات

د مالیزیا تر ټولو نه پخوانی جومات دی دا جومات د مالیزیا په پلازمینه (مرکز) کولا لامپور کې په تون پرئا نومي ځای کې واقع دی د نغارا تر جومات وړاندې (لږ وړاندې یاد کړل شو په ۱۹٦۵ میلادي کې جوړ شو) د مالیزیا مرکزي جومات همدا وو او دا په ۱۹۰۹ میلادي کال کې د سلطان سلانګور تر نظارت لاندې جوړ شوی دی د جومات تعمیر او ډیزاین ډېر زړه را ښکونکی دی او له شاوخوا څخه وربانديې را تاو شویو خورما یې ښکلا نوره هم زیاته کړېده د جومات په جوړښت کې د هسپانیې د پخواني ډیزاین د فن او هنر نښې موجودې دي او په ډېر کمال او ښه ډیزان سره جوړې شوې دوه منارې لري .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۳٤. د سلطان علي سيف الدين جومات

دا جومات په برونئ کې په بندرسري بګاوان ښار کې چې د برونئ مرکز دی واقع دی په ډېر ښکلي ځای کې په ډېر زيات ښکلي تعمير سره جوړ شوی دی او يو د هغه ځايونو څخه په شمار کې راځي چې بايد انسان يې ووينې دا جومات په ۱۹۵۸ ميلادي کې مکمل شوی دی او د اسلامي تعمير د فن او هنر يوه ښکلې نمونه ده دا جومات له يوې خوا ډېره زياته ښکلا لري او له بله پلوه په علاقه کې تر ټولو نه لوی جومات دی دا جومات سپينې مر مري منارې او طلايي ګنبد لري او په شاوخوا کې په شنو باغو باندې پوښلی دی چې جومات ته نوره ښکلا هم ورکوي او ددې جومات په خاصو خبره کې داده چې ګنبد ته يې په خالصه عربي طلاب باندې پوښ ورکړل شوی دی چې دا ډېره زياته قيمتي ده په لوړه زمکه باندې جوړ شوی دی د سري بګاوان له هر ځای نه ښکاره کيږي يوه لوړه مناره لري چې پداسې توګه جوړه ده چې په دنيا کې يې بل مثال نشته ددې جومات په جوړښت کې ټول مواد له بهر نه راوړل شوي دي حتي چې سنګ مرمر ورته د ايټاليانه شفافې شيشي او ګروپونه ورته د بريطانيا او قيمتي قالينې او پرشونه ورته د سعودي نه راوړل شوي دي ددې جومات ښکلا بالکل په الفاظو کې نشي بيانېدلی.

📷تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۳۵. جامع جومات

دا جومات په کېنیا کې په نیروبي کې دی دا جومات د کینیا له لویو او تاریخي جوماتونو څخه یو دی او په ټول ملک کې ځانګړی حیثیت لري دا جومات د سید مولانا عبد الله شاه په واسطه په د ۱۹۰۲ نه تر ۱۹۰٦ پورې جوړ شوی وو هغه یو مهربان او مذهبي مشر وو تر اوسه پوره د مسلمانانو لخوا د هغه کلیزه لمانځل کیږي د جومات تعمیر ډېر په زړه پوري او جوړښت یې زړه را ښکونکی دی د جومات په جوړښت کې زیات د مر مر د کاڼي استعمال شوی دی او ډېر په زړه پورې د عربي تعمیر په طرز شوی دی دری نقره یي ګنبدې او دوه په یو شان منارې لرې ترې لاندې یو قطار دکانونه دي چې د هغوی کرایه به ټول عمر د جومات مصارف پوره کوي په موجوده وخت کې په هغه دکانونو کې کلنیکونه او دوا خانې دي دا جومات د هغه ځای د خلکو لپاره د اسلامي درسګاه په ځای هم استعمالیږي د عربي ژبې او دیني زده کړې کورسونه او نور شیان پکې خلکو ته ور ښودل کیږي .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۳٦. د برنغمهام مرکزي جومات

دا جومات د برنغمهام په لوړه ساحه کې په انګلستان کې دی چې د همدې جومات په نوم یوه اداره ده د هغې ادارې له لوري یې کارونه او مسئولیتونه مخ په وړاندې ځي او په آروپا کې د

مسلمانانو د لوی مرکز په صفت یادیږي جومات د عبادت لپاره د نارینه او ښځو لپاره خلاص دی د جومات د ننه په هال کې (د مانځه په ځای کې) په یو وخت باندې ٤٠٠٠ کسان مونځ کولی شي او ټول د شاخوا ٢٠٠٠٠ شلو زرو کسانو په شاوخوا کې مسلمانان ددې جومات سره تعلق ساتي چې په جُمعو اخترونو او نورو خاصو مراسمو کې دې جومات ته ورځي دا جومات په ١٩٦٩ میلادي کال کې د مخکې یادې کړل شوې اداري لخوا جوړ شوی دی او په ١٩٧٥ میلادي کې یې په رسمي ډول باندې افتتاح وشوه او په غربي آروپا کې د لوی جومات په صفت و پېژندل شو د منارو په سر باندې یې وړوکې طلایي گنبد په ١٩٨١ میلادي کال کې کېښودل شوه چې هغه د جومات ښکلا لا پسې زیاته کړه په ١٩٨٦ میلادي کال کې د دولت لخوا په رسمیت و پېژندل شو او د اذان کولو اجازه ورته ورکړل شوه .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنگینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٣٧. د قل شریف جومات

دا جومات چې په جوړښت او ښائست کې په ټوله نړۍ کې جوړه نلري په آروپا کې (د ترکیې نه بغیر) له لویو جوماتونو څخه دی او دا جومات په تتارستان کې په قازان (کازان) ښار کې دی نوم یې د قازان د اسلامي مشر قل شریف (کول شریف) څخه اخستل دی چې دیني عالم او مذهبي مشر وو دا جومات هغه په خپلو هڅو پوره کړی وو او بیا په ١٥٥٢ میلادي کال کې قل شریف د خپلو متعددو طالبانو سره د روسي قواوو په ضد د خپلې خاورې په دفاع کې شهید شو او دا

جومات هم په همدې وخت کې په همدې جنګونو کې مکمل رنګ شو بیا تر ډېره وخته همداسې وو اوس اوس پدې وروستیو کې په ۱۹۹۶ میلادي کال کې د سعودي عرب او متحده عرب اماراتو په خاصه توګه او نورو ډېرو اسلامي تجارانو او اسلامي ملکونو پیسې جمع کړې او د قل شریف جومات یې له سر نه تعمیر کړو او په ۲۰۰۵ کال د جولای میاشتې په ۲٤ مه نیټه یې افتتاح وشوه ډېر زیات په ښکلي شکل باندې جوړ کړل شو څلور لوړې لوړې منارې او په عجیب طرز باندې جوړې ګنبدې یې داسې محسوس کیږي لکه هوا ته چې خاندې په ښکلي تیز پیروزیي رنګ کې دي د کتونکي زړه تازه کوي .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ۳۸. د الزلفی جومات

دا جومات د عمان په پلازمینه (مرکز) المسقط ښار کې په السیب سیمه کې واقع دی دا جومات د خپلې ښکلا له امله زیات مشهور دی ددې جومات په ګنبدو کې چې کومه ښکلا ده هغه په الفاظو کې نشي را ټولېدلی په خپلو متعدد ښائسته ګنبدو باندې په ښکلا کې داسې حد ته رسېدلی دی چې جوړه نلري .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۳۹. کرسټل جومات

دا یو عجیب جومات دی چې ټوله عظیمه ابادي یې د نکلو شیشې او کرسټلو (یو ډول معدني مواد دي چې ټول شفاف وي او بلور هم ورته ویل کیږي) جوړه شوېده او ډېر قیمتي جومات دی (په جوړولو یې ډېر زیات مصرف شوی دی) دا جومات د مالیزیا د نیمه جزیرې په شمال شرقي ساحه کې د کوالا تیرینغانو په ښار کې واقع دی او دا جومات بادشاه زین العابدین په ۲۰۰٦ کې شروع کړو او په ۲۰۰۸ کې پای ته ورسېدو د جامع استقلال (یاد یې لږ وړاندې تېر شو) نه وروسته په جنوب شرق آسیا کې تر ټولو لوی جومات دی او مالیزیا چې ډېر زیات ښکلي جوماتونه لري دا هم پکې یو له ډېرو ښکلیو جوماتونو څخه دی د سمندر په غاړه باندې په واقع ښار کې دا ښکلی جومات په یو وخت باندې ۱۵۰۰۰ پنځلس زره مونځ کونکي ځایولی شي . 📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٤۰. د کوالا کانجسار جومات

مالیزیا چې په ښائسته جوماتونو کې شهرت لري ډېر زیات ښکلي جوماتونه لري هرڅو چې زه کوښښ کوم چې بل به له مالیزیا څخه نه را اخلم لکن نشم کولی چې تري تېر شم په ټوله مالیزیا کې یو ښکلی او په ښائست کې په ټوله دنیا کې بې جوړې دا یو بل جومات دی چې په مالیزیا کې د بیراک په ولایت کې په کوالا کانجسار په سیمه کې په ۱۹۱۷ میلادي کال کې جوړ شوی دی او د خپلې ښکلا له امله په ټوله نړۍ کې مشهور دی او له لرې لرې ځایونو څخه یې خلک لیدلو ته ورځي .

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ٤١. د کولونیا جامع جومات

دا جومات د جرمني په کولونیا ښار کې دی دا په دې ځای کې د ترکي دولت په مرسته د همدې ځای د مسلمانانو لپاره جوړ شوی دی او تر جوړېدو وړاندې یې د ډېر وخت لپاره په جوړېدو باندې شخړې روانې وې چې هلته میشته غیر مسلمو نه غوښتل چې دلته د جومات جوړ شي او کله چې مسلمانانو دا دعوه وګټله نو د جوړېد په وخت کې به یې هم په هر شي باندې نیوکې کولې حتی چې په منارو باندې یې هم نیوکې وشوې چې دا تر څومره پورې لوړول کیږي نورې د ودروي بالآخره جومات پدې وروستیو کې یعنې په ۲۰۱۲ کې یې افتتاح وشوه په تعمیر کې ډېر عجیب دی په عجیب طرز باندې جوړ دی د خالصې شفافې شیشې دیوالونه هم لري او نور جوړښت یې هم ډېر په زړه پورې دی او د ډېرو مونځ کونکی ځای هم لري او د یوه پلوه جومات او له بله پلوه یوه اسلامي درسګاه ده او یوه ښه فعاله اسلامي اداره ده.

📷تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۴۲.د اُرطا کوی جامع جومات

دي جومات ته مسجد المجيدي هم وايي دا په اسطنبول ترکيه کې دی په استنبول کې د هغه نريو اوبو (په نسبت سره سمندر ته) په غاړه جوړ شوی دی چې البحر الأسود او بحر مرمرة سره نښلوي په کال ۱۸۵۱نه تر ۱۸۵۴ ميلادي کې د سلطان عبد المجيد لخوا جوړ کړل شوی دی لکن د ضعيف جوړښت او کمزوري تهداب له امله يې په ۱۹۶۰ ميلادي کې ترميم و غوښت نو له سر نه جوړ کړل شو او تر ۲۰ متره پورې ژور تهدابونه ورته و کيندل شول او د نوي او ډېر زيات قوي سيستم سره جوړ شو يوه لويه مرکزي ګنبد او دوه لوړې لوړې منارې لري تعمير يې ډېر په ښه طرز جوړ دی او موقعيت نور هم ښکلی کړی دی .

📷تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۴۳ . د حضرت فاطمې جومات

دا جومات چې په ډېر عجيب ډول جوړ شوی دی په کويټ کې دی دا په ۱۹۷۶ ميلادي کال کې افتتاح شوی دی ددې په تعمير کې عجيبه خبره داده چې دا جومات ډېر فراخ دی خو بيا يې هم د ننه د مانځه په ځای باندې يوازې يوه ګنبد جوړه کړل شوې ده چې هغه دومره فراخې لري چې ټوله د مانځه ساحه يې نيولې ده په زړه پورې په ښه شکل باندې جوړې ګنبدې او ورسره په خوا کې ولاړې نازکې منارې چې په ډېر زيات فني مهارت باندې جوړه شويده جومات ته په ټوله دنيا کې شهرت ورکړی دی .

📷تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٤٤. د ازادي جومات

دا جومات د ترکمنستان په مرکز او په ترکمنستان کې تر ټولو نه په لوی ښار عشق آباد کې جوړ شوی دی د جومات په تعمير کې اکثر د مرمر قيمتي کانی لګېدلی دی يوه مرکزي ګنبده او څلور لوړې منارې لري د تعمير شکلا يې په ټوله دنيا کې مشهور کړی دی او يو له ښکليو جوماتونو څخه ګڼل کيږي تاريخ يې ډېر زوړ نه دی په ١٩٩٨ ميلادي کال کې افتتاح شوی دی او د ترکمنستان د دولت په مالي لګښت باندې جوړ شوی دی يوازې په د ننه ساحه کې يې په يو وخت باندې ٥٠٠٠ پنځه زره مونځ کونکي مونځ کولی شي.

📷تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٤٥. د الرحمن جامع جومات

دا جومات په اليپو سوريه کې دی او د خپل جوړښت په شکل کې د دنيا له ټولو جوماتونو څخه بدل دی ددې جومات مربع جوړې لوړې منارې د اموي وخت د انجينري فن او هنر وو او د بهر له خوا نه د جومات په دېوال باندې د مر مر قيمتي

کاڼي لګېدلې دي چې د سورة الرحمن آیتونه وربانديې په ډېره ښکلې عربي خطاطي بانديې نقش شوي دي دا جومات په ۱۹۷۸ میلادي کال کې مکمل او پرانستل شو .

تصویر یې لېږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

# ٤٦. د النیلین جومات

دا ښکلی جومات د سوډان په ام درمان لوی ښار کې په هغه ځای کې واقع دی چېرته چې دوه نیل نومي سیندونه سره یو ځای کیږي ددې امله دې جومات نوم له (النیلین) دوه نیلونو څخه اخیستی دی دا جومات د سوډاني مشر جعفر محمد نمیري د بادشاهي په دور کې په ۱۹۸٤ کال کې د سپتمبر د میاشتې په دوهمه نېټه بانديې افتتاح شو او د سوډان له ښکلیو ابادیو څخه ګڼل کیږي په جوړښت کې یې پوره توجه ورته شوېده د قیمتې المونیم او ښه معیاري سیمټ پکې استعمال شوي او په نقشه کې د ټولې دنیا د جوماتونو څخه ځانګړی دی یوه مرکزي ګنبد لري او یوه تر ګنبد په فاصله کې لوړه مناره لري چې دواړه یې ډېر په عجیب انداز جوړ دي.

تصویر یې لېږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ۴۷. د کت شمیلا جومات

دا جومات په سرلنکا کې د بیروالا په سیمه کې په لوړه باندې په عربي تعمیري ډیزاین باندې جوړ شوی دی شکلی سپین لوړ او په زړه پورې تعمیر لري تاریخ یې دولسمې صدی ته رسیږي او د جوړیدو په اړه یې په ساحه او سرلنکا کې مختلف ډول قصې دي د سرلنکا له لویو او خاصو جوماتونو څخه شمېرل کیږي جومات په داسې ځای کې جوړ شوی دی چې شاوخوا ته ورته شنې ونې واقع دي چې د خورما او کوپرې ونې دي او هغې د جومات شکلا نوره هم زیاته کړیده .

تصویر یې لږ وروسته په رنګینو صفحو کې ملاحظه کړئ.

## ٤٨. د ابي بكر جومات (د ماډريد اسلامي مركز)

دا جومات چې زياد شهرت يې په المركز الثقافي الاسلامي سره دى په هسپانيه كې په ماډريډ ښار كې جوړ شوى دى جومات ته زمكه له مخكې نه وقف شوې وه لكن د جوړيدو توان يې له چا سره نه وو بالآخره د المركز الثقافي الاسلامي د هڅو په نتيجه كې دا جومات په ١٩٨٨ ميلادي كال كې د مونځ كونكو په مخ پرانيستل شو مالي مصارف يې ټول سعودي حكومت برداشت كړل په ١٩٩٢ ميلادي كال كې كله چې ددې جومات رسمي افتتاح كېده په مجلس كې د سعودي حكومت لوړ پوړي استازي شريک شوى وو او هغه يې افتتاح كړى وو .

📷تصوير يې لږ وروسته په رنګينو صفحو كې ملاحظه كړئ.

## مــا خـذ و نـــه

(مـخـتـلـف كـتـابـونـه )

1-التاريخ الإسلامي مواقف وعبر، د. عبد العزيز الحميدي، دار الدعوة، الإسكندرية.

2- السيرة النبوية دروس وعبر، د. مصطفى السباعي، المكتب الإسلامي، بيروت، لبنان، الطبعة التاسعة، 1406هـ - 1986م.

3- السيرة النبوية، لأبي محمد بن عبد الملك بن هشام، دار الفكر.

4- السيرة النبوية عرض حقائق وتحليل أحداث د.على محمد الصلابي الطبعة الأولى.

5- السيرة النبوية الصحيحة، د. أكرم العمري، الطبعة الأولى 1412هـ/ 1992م، مكتبة العلوم والحكم بالمدينة المنورة.

6-السيرة النبوية في ضوء المصادر الأصيلة:الدكتور مهدي رزق الله أحمد ط1-1412ه مكتبة الملك فيصل.

7- السيرة النبوية مواقف وعبر :الدكتور عبد العزيز بن عبد الله الحميدي ط2 دار الدعوة .

8-القيادة العسكرية في عهد الرسول ﷺ ، دار القلم، الطبعة الأولى، 1410هـ 1990م.

9- تفسير القرطبي، لأبي عبد الله القرطبي، دار إحياء التراث العربي، بيروت، لبنان، 1965م.

10- سير أعلام النبلاء: شمس الدين الذهبي، مؤسسة الرسالة، الطبعة الأولى، 1403هـ.

11- صور وعبر من الجهاد النبوي في المدينة، تأليف: د. محمد فوزي فيض الله، دار القلم، دمشق، الدار الشامية، بيروت، الطبعة الأولى، 1419هـ- 1996م.

12- صحيح السيرة النبوية، إبراهيم العلي، دار النفائس، الطبعة الثالثة، 1408هـ - 1998م.

13- صحيح البخاري، محمد إسماعيل البخاري، دار الفكر، الطبعة الأولى، 1411هـ - 1991م.

14- على خطى الحبيب :عمرو خالد

17- فقه السيرة النبوية :الدكتور محمد سعيد رمضان البوطي ط11 1991م

18- من معين السيرة، صالح أحمد الشامي، المكتب الإسلامي، الطبعة الثانية، 1413هـ- 1992م.

19- فقه السيرة النبوية، منير الغضبان، معهد البحوث العلمية وإحياء التراث مكة المكرمة.

20- شرح النووي على صحيح مسلم للإمام النووي المتوفى 676هـ - طبع المطبعة المصرية ومكتبتها – القاهرة عام 1347هـ.

21-البداية والنهاية، أبو الفداء ابن كثير الدمشقي. دار الريان للتراث.

22- غزوة بدر الكبرى الحاسمة، محمود خطاب.

23-غزوة بدر الكبرى، محمد أبو فارس، دار الفرقان، الطبعة الأولى، 1402هـ- 1982م.

24- غزوة بدر الكبرى، محمد أحمد باشميل، طبعة دار الفكر، الطبعة السادسة، سنة 1394هـ

25-فتح الباري، ابن حجر العسقلاني، دار المعرفة، بيروت، لبنان.

26- الدر المنثور في التفسير بالمأثور، الإمام السيوطي، الناشر محمد أمين دمج، بيروت، لبنان.

27-زاد المعاد في هدي خير العباد، أبو عبد الله ابن القيم حققه: شعيب الأرناؤوط وعبد القادر، الطبعة الأولى، 1399هـ، دار الرسالة.

28-السيرة النبوية في ضوء القرآن والسنة، محمد أبو شهبة، دار القلم، دمشق،

الطبعة الثالثة، 1417هـ - 1996م.
٢٩-المستفاد من قصص القرآن للدعوة والدعاة، عبد الكريم زيدان، مؤسسة الرسالة، الطبعة الأولى، 1418هـ- 1997م.
٣٠- طبقات ابن سعد الكبرى، محمد بن سعد الزهري، دار صادر، ودار بيروت للطباعة والنشر، 1376هـ- 1957م.
٣١- المغازي للواقدي، محمد عمر بن واقد المتوفي 207هـ، تحقيق د. مارسدن جونس، عالم الكتب، بيروت، الطبعة الثالثة، 1404هـ- 1984م
٣٢- القيادة العسكرية في عهد الرسول ﷺ، دار القلم، الطبعة الأولى، 1410هـ- 1990م.
٣٣- إمتاع الأسماع بما للرسول من الأبناء والأموال والحفدة والمتاع، للشيخ أحمد المقريزي، صححه وشرحه محمود محمد شاكر، مطبعة لجنة التأليف والترجمة بالقاهرة 1941م.

(فقهي كتابونه)

- المبسوط للسرخسي
- شرح الوقاية
- حاشية ابن عابدين (رد المحتار على الدر المختار)
- غمز عيون البصائر في شرح الأشباه والنظائر
- العناية شرح الهداية
- فتاوای قاضیخان
- التتارخانية
- محيط السرخسي
- الهداية
- الكتاب
- اللباب في شرح الكتاب
- حاشية طحطاوي على المراقي
- فقه العبادات (حنفي)
- الاشباه و النظائر
- مراقي الفلاح

- الفتاوى الهندية (عالمگيري)
- تحفة الملوک
- البحر الرائق شرح كنز الدقائق
- جامع الرموز
- إرشاد أهل الملة إلى اثبات الأهلة
- المحيط البرهاني في الفقه النعماني
- الجامع الصغير
- شرح رائض الفرائض
- بدائع الصنائع
- تبيين الحقائق شرح كنز الدقائق
- المبسوط
- الإنتصار والترجيح للمذهب الصحيح

## د مؤلف چاپ شوي آثار

1. د حضرت محمد ﷺ د نبوت معجزې
پښتو
2. ړنګه ځاله
پښتو
3. آشيانه سوخته
فارسي

4. په اسلام کې د انسان حقوق
انګلیسي
5. دین یې دام دی ددنیا په لار کې ایښی
پښتو
6. فرار از کزار
فارسي
7. له کزاره تېښته
پښتو
8. زوړ دین نوی مسلمان
پښتو
9. ډم ډمکو جي او لیکوال
پښتو
10. ادیان پشت در
فارسي
11. له دروازې تر شا دینونه
پښتو
12. د انصاف او اعتدال لاره
پښتو
13. کفري الفاظ
پښتو
14. کل بچه
فارسي
15. معلومات عمومي فارسي
16. د حج لارښود پښتو
او انګلیسي
17. محمد رسول الله ﷺ سیرت اخلاق او
پېژندنه پښتو
18. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه اول
پښتو
19. د اسلامي تاریخ له پاڼو څخه دوهم
پښتو

20. د اسلامي تاريخ له پانو څخه دریم پښتو
21. د اسلامي تاريخ له پانو ځخه څلرم پښتو
22. د اسلامي تاريخ له پانو څخه پنځم پښتو
23. د اسلامي تاريخ له پانو څخه شپږم پښتو
24. د اسلامي تاريخ له پانو څخه اوم پښتو
25. د اسلامي تاريخ له پانو څخه آتم پښتو
26. د اسلامي تاريخ له پانو څخه نهم پښتو
27. د اسلامي تاريخ له پانو څخه لسم پښتو
28. د فقهي کتابونو له پانو څخه اول پښتو
29. د فقهي کتابونو له پانو څخه دوهم پښتو
30. د فقهي کتابونو له پانو څخه دریم پښتو
31. د فقهي کتابونو له پانو څخه څلورم پښتو
32. د فقهي کتابونو له پانو څخه پنځم پښتو
33. د فقهي کتابونو له پانو څخه شپږم پښتو
34. د علم حديث مطالعه پښتو او انګليسي
35. قرآني معلومات لمړی برخه پښتو

36. اللهم عربي، انګلیس، پښتو
37. الدعاء پښتو
38. کلمه طیبه پښتو
39. المسجد پښتو

## له جومات څخه وتل

له جومات څخه په وتلو كې به چپه پښه تر مخ كړي او لاندې دعاء به ولولي :

**بسمِ الله وَالصّلاةُ وَالسّلامُ عَلى رَسولِ الله، اللّهُمَّ إِنّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِك، اللّهُمَّ اعصِمْني مِنَ الشَّيْطانِ الرَّجيم.** [1]

ترجمه : (د وتلو شروع) د الله ① په نوم كوم درود او سلام دي وي په رسول الله ① باندې اى الله ① زه لتا څخه ستا د فضل سوال كوم اى الله ① ما له رټل شوي شيطان څخه وساته .

---

[1] **رواه مسلم وابن ماجه .**